د افشاري استبدادونو پرضد

# د افغانانو پاڅونونه

ليکوال

کانديد اکاډميسين محمد اعظم سيستانی

ژباړن

صالح محمد صالح



## د افشاري استبدادونو پرضد





لیکوال

کاندید اکاډمیسین محمد اعظم سیستانی

ژباړن

صالح محمد صالح






PUBLISHED BY

*Sahaf Book Publishing Institution*

**Quetta**

**2001**

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## د کتاب ځانګړنې:


| | |
|---|---|
| کتاب | :: د افشاري استبدادونو پرضد د افغانانو پاڅونونه. |
| ليکوال | :: کانديد اکاډميسين محمداعظم سيستانی. |
| ژباړن | :: صالح محمد صالح. |
| مهتمم | :: عبدالجبار ترنګ (تُرابي). |
| خپروونکې | :: صحاف نشراتي مؤسسه. |
| چاپکال | :: ۱۳۸۰ل/۲۰۰۱م کال. |
| چاپشمېر | :: (۱۰۰۰) ټوکه. |
| چاپځی | :: يونايټيډ پرېس ـ کوټه. |
| کمپوز/ډيزاين | :: صحاف کمپيوټر ـ کوټه. |
| کمپوزر | :: په خپله ژباړن. |
| بيه | :: (۳۰) کلدارې. |






د




# استاد مهدي خليق

په نوم!

په درناوي

ژباړن



## د لوی ښتن څخه د ښه راتلونکي په هیله

زموږ د مورنۍ ژبې **پښتو** لپاره د غوره کتابونو ژباړل یو اشد ضرورت دی، خصوصاً هغه کتابونه چې زموږ علمي اوورځنۍ اړتیاوې پوره کوي او زموږ د ټولني ځوانان او راتلونکي نسلونه ګټه ځني واخلي، چې یو هم همدا اثر د **کاندید اکادمیسین محمد اعظم سیستاني** دی، چې په دري ژبه یې لیکلی او د افغانستان د علومو اکاډمۍ له خوا څو کاله پخوا خپور سوی و او زموږ د ګران وطن د تېر پېر د یرغلګرو د یو ظالم او مستبد شخص افشار نادر د ظلمونو څېره پکښې ښودل سوې ده. خو د افغان ملت د شهامت په وړاندې یې د خپلو شومو اعمالو په مقابل کي ماتي خوړلي دي او ددې خاورې او وطن له هر کونج او کنار څخه د ټولو پرګنو له خوا د بدو عواقبو سره مخامخ سوی دی او دې ته یې نه دی پرې ایښی چې د خپلي جابرانه او تېري کوونکي واکمنۍ ریښې زموږ په ځمکه کي د ډېر وخت لپاره وغزوي.

که څه هم ده د خپلي تشدد خوښوونکي واکمنۍ لپاره زموږ د اتلانو سترګي د ولس په وړاندې راایستلي دي، خو په ولس کي یې ددې اقدام په وړاندې د اتحاد او یووالي روحیه راژوندۍ کړې ده او ددې وطن ساتونکو مبارزه ورسره کړې ده.

نوري خبري به د کتاب په متن کي ولولئ، چې ګران **صالح محمدصالح** چې تر حد زیات یې هڅه کړې ده چې د کره پښتو نوي او زاړه الفاظ پیدا کي او د کتاب د متن په جملو کي یې واوډي، په خوږه او روانه پښتو په داسي حال کي ژباړلی دی، چې افغان ملت یو وار بیا د یو نامعلوم ازمېښت سره مخامخ دی او دا ورته لازمه ده چې یو وار بیا د تېر پېر په شان خپله د یووالي جنډه اوچته کړي او د نړۍ خلګو ته دا په اثبات ورسوي، چې موږ یو ملت یو او موږ هغه پردي کرغېړن لاسونه نه پرېږدو، چې زموږ د نفاق سبب کېږي.

**صحاف نشراتي مؤسسه** یو ځل بیا ویاړي چې (**د افشاري استبدادونو پرضد د افغانانو پاڅونونه**) د ګران صالح ژباړه د لومړي ځل لپاره خپروي او د ژباړونکي د ښې راتلونکي او قلم برکت له پاک څښتنه غواړي.

پر ځـواني دې بـرکت سي!

**اداره**

# نیولیک

| لړ سرلیک | مخکنه |
|---|---|



## لومړی څپرکی

### د نادر افشار د فیوډالي دولت بنیه



## دویم څپرکی

### پر افغانستان د نادر افشار لښکرکښې

## دريم څپرکی

### د نادر افشار پرضد د افغانانو پاڅونونه

# تقريظ

د اتلسمې ميلادي پېړۍ په دېرشمو او څلوېښتمو کلونو کې ***"د افشاري استبدادونو پرضد د افغانانو پاڅونونه"*** رساله د کانديد اکاډميسين محمد اعظم سيستاني له ګټورو، علمي او څېړنيزو کارونو څخه دی، چې هم د موضوع ټاکنې له مخې، هم د څېړنې د څرنګتيا او هم يې د ليکنې او ژبې له مخې په هېواد کې ساری لږ ليدل کېږي.

ليکوال په پيل کې په ختيځ کې د فيوډالي نظام او د هغه د ظالمانه چلند يوڅرک راښوولی، وروسته يې د علمي نړۍ ليد (جهانبينی) په رڼا کې د نادرافشار فيوډالي دولت بنه لــه ټولو ختيزو (شرقي) غوسه ناکو څرنګتياوو سره په منونکي منطق ارايه کړې ده.

د نړۍ نيولو لپاره د نادر افشار ناپايه حرص، د شتمنيو او پيسو راټولونه، د نيول شويو سيمو د اوسېدونکو لوټونه او له پاڅون کوونکو کسانو څخه غچ اخيستنه، د سرونو يادګاري منارونه او په زور او شکنجو سره د ټپل شويو مالياتو اخيستنه، انسان د (شرقي دسپوتيزم) کليمې رښتينې مانا ته رسوي.

سربېره پردې ليکوال د نادرفيوډالي دولت د استبدادونو د ناوړو استفادو پايلې چې غوښتل يې خلک او بېلابېل او نا ورتــه مليتونه په زور سره د نېزو په څوکو او د سرونو د منارو په ښودلو پــه خپلــه واکمنۍ کې راولي، په پرله پسې دهقاني پاڅونونو کې ښه انځور کړي او ښودلې يې دي، چې د فتحه شويو سيمو خلکو ددې ګټو اخيستنو او ظلم پــهوړانــدې څنګه غبرګون ښودلی او د ظلم له منګولو څخه د خلاصون په موخه څنګه جنګېدلي دي. تر هغه ځايه چې ليکوال خبر دی، هغه ګڼ شمېر آثار چې تر اوس مهاله د منځنيو پېړيو د تاريخ په هکله کښل شوي، يــوازې د افقي پېښو څرګندوی دي او د خلکو د ژوند د اړيکو په اړه لږې څرګندونې پــه

کې شوي، خو ښاغلي سيستاني د تاريخي پېښو د څرګندونې له هماغه پيله بنسټيزو مسايلو ته پاملرنه کړې او هڅه يې کړې چې د ټولو پېښو ترسره کېدنې د ټولو عملونو او غبرګونونو په مقياس کې وسنجوي، چې د ټولنيزو دښمنو ډلو ترمنځ رواني دي.

ليکوال د کتاب په پای کې د نادر افشار د ظلمونو پرضد د خلکو پاڅونونه او په دغو پاڅونونو کې د هرې ډلې موخې ( چې له بده مرغه ډېر پاڅونونه د پاڅون کوونکو له ماتې سره مله وو). په ځير سره شنلي او ددې ماتو علتونه يې هم جوت کړي دي.

پر دې بنسټ، ليکوال يوازې د صادقانه بيان لـه مخې د هېواد ددې لندې خو ارزښتمنې دورې په بيان سره بل مقصد هم لـرلی، چې هغه د هدف لرونکي او مسئول انسان په توګه د لوستونکو پوهونه ده.

زه چې ددې ليکوال له ډېرو آثارو سره اشنا يم، ويلای شم چې د ښاغلي سيستاني ليکنې د ايډيالوژيک جوړښت له مخې پاموړ او ارزښتمنې دي او لوستونکي يې د هر اثر تر لوستو وروسته، ټاکلو سياسي او تاريخي نتايجو ته رسېږي.

اوسنی اثر هم ددې هڅاند ليکوال ليکنه ده، سره له دې چې د اتلسمې پېړۍ د دېرشمو او څلوېښتمو کلونو په بهير کې د هېواد ټولنيز، اقتصادي او سياسي حالات څرګندوي، د هغو کارونو څرګندونه هم کوي، چې په ختيځ (شرق) کې د نوي سياسي نظم د تشکيل او جوړښت سبب شول او متمرکزو فيوډالي حکومتونو ته د پښتنو عدل غوښتنه هم څرګندوي.

ليکوال ته د بري په هيله دا کتاب يو ګټور او بکر اثر او د يوه پوهنيز تيزس په توګه يې د چاپ وړ ګڼم او د تاريخ مينه والو ته يې د لوستلو لارښوونه کوم!.

کانديد اکاډميسين ډاکټر اکرم عثمان

۱۳۶۷/ ۱۱/ ۱۰ل کال

# د ليکوال سريزه

د منځنيو پېړيو تر ټولو عمده ځانګړتيا دا ده، چې نه يوازې په اروپا او شمالي افريقا کې، بلکې په اسيا او په ځانګړې توګه د نژدې ختيز او منځني ختيځ هېوادونو کې د فيوډالي نظام رامنځته کېدنه او بشپړېدنه، پر ځمکو فيوډالي انحصاري مالکيت او د کرګرو او عامو ځمکوالو د استثمار په وسيله له دې ځمکو څخه په ګټو اخيستنې پورې تړلې ده.

فيوډالي نظام چې د ټولنپوهانو په اند د انساني ټولنې بشپړتيا ته يو ضروري پړاو دی او پيدايښت يې پر خپل وار او وخت له نورو توليدي ځواکونو سره مرسته وکړه، دا يو نظام ګڼل کېږي، چې اصلي پوړونه (طبقات) يې دا دي: لوی ځمکوال او (رعيت) بزګران. چې په هغو کې بيا سياسي واک د لويو ځمکوالو په لاس کې وي، په دې نظام کې حاکمې طبقې ته (فيوډال) او محکومې ته (رعيت) وايي.

په فيوډالي نظام کې د زبېښاګرې (فيوډالې) او استثمارېدونکې طبقې (رعيت) ترمنځ طبقاتي مبارزې د ټولنيز ژوند بنسټيز څرنګوالي جوړوي، له همدې کبله په منځنيو پېړيو کې د حاکمو طبقو (لويو ځمکوالو) پرضد د بزګرانو او ښاري تشلاسو خلکو غورځنګونه ددې دوران له جوتو ځانګړنو څخه دي، چې ډېر طبيعي ښکاري. ځکه په فيوډالي شرايطو کې بزګرانو د ټولنې اصلي برخه جوړوله، چې د حاکمې طبقې (فيوډالو ځمکوالو) په توګه اوسېدل.

د ټولنې نورې کړاوځپلې ډلې، صنعتکاران او کسبګر د فيوډالي دورې په وروستيو کې په خپلواک ډول راوړاندې شولې.

د تاريخ په ګواهي، په ختيځ کې بزګري پاڅونونه تر لويديځ پراخ او لوی وو. بايد ووېل شي چې: د اروپايي ټولنې د فيوډالي ظلمونو او ستم له کبله د اروپا دهقاني پاڅونونو څوارلسمه او پنځلسمه پېړۍ ولړزوله او په شپاړلسمه او اوولسمه پېړيو کې يې نور زور هم وموند او د همدغو

پاڅونونو له کبله د اوولسمې پېړۍ په څلوېښتمو کلونو کې د "بورژوازي" انقلاب زېږی ورکوي.

څرنګه چې په فیوډالي بهیر کې د افکارو وده، په ټولیز (عمومي) ډول د مذهبي معتقداتو په لیکه کې وي، له دې کبله په ټولو منځنیو پېړیو کې دهقاني پاڅونونه ځان ته مذهبي بڼه غوره کوي او په ټولنه کې د مذهب او سلک په جامه کې ژور ټولنیز تضادونه زیاتوي.

په ختیځ، په ځانګړې د منځني ختیځ په هېوادونو: افغانستان، ایران، ماورالنهر او بین النهرین کې دهقاني پاڅونونو د مذهب په جامه کې ټولنیز تضادونه زېږول، لکه: د ابومسلم خراساني غورځنګ، سنبادګبر غورځنګ، د استادسیس بادغیسي او حریش سیستاني غورځنګ، د یوسف البرم او خراساني غورځنګ، د حکیم مقنع بلخي په مشرۍ د خراسان د سپینو جامو اغوستونکو غورځنګ، د حضین سیستاني غورځنګ، د آذرویه مجوسي او محمد ابن شداد سیستاني غورځنګ، د بوعاصم بستي پاڅون، د آذرک سیستاني د زوی وتل، په آذربایجان کې د عربو د واکمنۍ پرضد د بابک خرم دین پاڅون او د مغلو او سیمه ییزو فیوډالانو پرضد د خراسان د مشرانو پاڅون او د صفوي واکمنۍ پرضد د میرویس هوتک په مشرۍ د کندهار د خلکو پاڅون، د هند د ګورګیانو د سیاسي واکمنۍ پرضد د روښانیانو غورځنګ او داسې نور په لسګونو کړکري پاڅونونه چې زموږ په هېواد او ختیځ کې یې د فیوډالیزم په هر پړاو کې بدلونونه رامنځته کړي چې په پای کې یې فیوډالي نظام له نښتۍ سره مخامخ کړ.

په ټولو ځایونو کې ددې پاڅونونو لوی علت فیوډالي ګټې یانې مالیات، نورې نیمګړتیاوې، فشارونه او شکنجې دي، چې کله کله به دا فشارونه بزګرانو ته په غوڅ ډول د زغم وړ نه وو، ګلیوالو به د اړتیا له مخې خپل کورونه او کروندې خوشې کولې او غرونو، دښتو یا هم ښارونو ته به یې پناه وړله، خو هلته یې هم هوسایي نه لیده.

حجاج بن یوسف ثقفي (۷۵ _۹۵هـ) د اموي خلیفه عبدالملک ابن مروان په واکمنۍ کې تر ټولو ظالم او د خلافت، ختیزو هېوادونو د

کلیوالو او بزګرانو د لېږدونې لامل و، چې دې خلکو د مالیاتو اخیستونکو مامورانو د شکنجو او زور زیاتي له کبله .. خپلې کروندې خوشې کړې او ښارونو ته يې مخه کړې وه، ده به دا خلک " د ټولنې طفاله" او "پردي وحشيان" بلل او له ښاره يې د بېرته ایستلو فرمان ورکاوه او خپلو لومړنیو ځایونو ته يې لېږدول، د پېژندنې په ډول به ددې تښتېدلو کلیوالو پر لاسونو یا غاړو یوه ټاپه لګول کېده؛ چې په هغې کې به د ځای نوم او د جزیې بیا اخیستنه د جریمې په ډول یادېده، چې دا کار مسلمانو بزګرانو ته ډېر توهینوونکی تمامېده.(*)

په دې توګه زموږ د تاریخ ډېره برخه په فیوډالي دوران کې د فیوډالانو د ستم په مقابل کې د فیوډالي ګټو د فشارونو له کبله غرونو او دښتو ته د کلیوالو او بزګرانو د ډله ییزې او جلا جلا تېښتې له کیسو څخه ډکه ده، که څه هم دا منفي غبرګون په فیوډالي پېر (عصر) کې ډېر تکرار شو، خو اخر پرخپله بنه پاتې نه شو، وده يې وکړه او په کرکري پاڅونونو واوښت.

لومړني کرکري پاڅونونه تیت و پرک وو، چې وروسته يې لږ - لږ یووالی وموند، دا پاڅونونه خپلسري وو، هیڅ ډول لارښود پروګرام او تیوري يې نه درلوده، په دې توګه د بېلابېلو مذهبونو او ډلو تر بیرغ لاندې راتلل.

په بزګرانو کې به معمولاً نارضايتي او بغاوت ورو - ورو یوځای کېدل او کله چې به يې زغم پایته رسېده، نو د حکومتي مامورینو د یوه ظالمانه چلند په پلمه به يې غوسه راپارېده او د خپلسري پاڅون سبب به ګرځېده.

څرنګه چې کرکري پاڅونونو کوم ځانګړی هدف او نظم نه درلود او نه به هم ورته یوه ټاکلې کړنلار جوړېده، نو له دې کبله به نه بریالي کېدل.

کله چې به په نسبي ډول کوم پاڅون بري ته رسېده او د څه مودې لپاره به يې حکومت هم ترلاسه کاوه، نو د لنډې مودې لپاره به يې نوی

---

(*) محمد اعظم سیستاني: مالکیت ارضي و جنبش های دهقاني در خراسان قرون وسطی، ۱۳۶۲ل کال، ۲۰۱، ۴۷۱، ۴۸۱ مخونه.



نظم هم جوړاوه. خو دا نوی نظام به ډېر ژر لیرې کېده او په مستقیم او نامستقیم ډول به فیوډالي اړیکې بیا ژوندي کېدل، یا به سیمه یېزو فیوډالانو حکومت پر بل مخ اړاوه او یا به هم د کرګرانو استازي چې حکومت به یې په لاس کې و، په فیوډالانو بدلېدل. یوه نوي ټولنیز نظم د پېژندنې پر بنسټ یوې کړنلار ته اړتیا درلوده، خو دا پېژندګلوي د بزګرانو له خوا نه شوه ترسره کېدای.

د کرګري پاڅونونو پاشلتیا او پروګرام نه درلودل، همداراز له یوې ټولنیزې او علمي خبرتیا څخه د دوی بې برخوالی به ددې سببېده چې واړه سیمه ییز فیوډالان له مرکزه د ځان خپلواکولو او پر ګاونډیو د برې لپاره له دغو پاڅونونو څخه کار واخلي. ډېر کرګران به هم د خپلې کمزورۍ له کبله دغو سیمه ییزو فیوډالي مشرانو ته تسلیمېدل.

کله به دوی له سیمه ییزو فیوډالانو څخه غوښتل چې د پاڅون مشري پر غاړه واخلي، ددې ډول پاڅونونو ماتې او بري سره ډېر توپیر نه درلود.

کرګري پاڅونونه باید حتماً د پوهې طبقې د استفادې وړ ګرځېدای. کله به د ښارونو کسبګرو هم په دغو پاڅونونو کې ګډون کاوه، چې په دغو پاڅونونو کې ددوی ګډون ددې غورځنګونو د پوهونې او یووالي سببېده.

لنډه دا چې کرګري غورځنګونه په ختیځ او لویدیځ کې د منځنیو پېړیو تاریخي بهیر مشخصوي او د فیوډالیزم په بدلون، بشپړتیا او انحطاط کې ددغو پاڅونونو اغېزې تر نورو ښاري خواریکښو ډلو په ضمني ډول دا تاریخي حقیقت تاییدوي، چې د ملت یوه برخه یانې خواریکښې طبقې د تاریخ رښتینې جوړوونکې دي.

په دې توګه، کرګري غورځنګونه د فیوډالي نظام له بنسټیزو مشخصو څخه دي، چې د یوه ټولنیز ـ اقتصادي فرماسیون په توګه یې د بشري تاریخ له زرو زیات کلونه ونیول، د ځینو اسیایي او افریقایي هېوادونو په تېره زموږ د هېواد یو زر او پنځه سوه کلونه یې ونیول، خو څرنګوالی یې په ټولو ځایونو کې یو ډول نه و، ځکه هر هېواد او د هېوادونو هرې ډلې بېلابېلې فیوډالي ځانګړنې لرلې.

کاندید اکاډمیسین محمد اعظم سیستانی

# د ژباړن یادښت

د نادرافشار پرضد د افغانانو پاڅونونه زموږ د هیوادني تاریخ یو داسې باب دی، چې لوستل یې هر هیوادمیني او هیوادپال افغان ته د دې ډول استبدادونو په وړاندې ویښ شعور وربه برخه کوي، ځکه په دې پاڅونونو کې موږ ته څرګندېږي چې سیمه ییز فیوډالان له ولسي خلکو سره په څه بڼه یو کېږي او بیا چې کله د نادري پوځ ګوابنونه یا هم مادي امتیازونهویني، نو له خوارو ولسي خلکو سره خیانت ته ملاوې تړي او په دې توګه د دوی دا کار د فیوډالي ښکېلاک او زبېښاک کرکجنه بڼه په ښه ډول انځوروي.

په دې جګړو او کشالو کې د نادر ناپایه حرص او د هیوادونو د خپلونې اورنی څرک هم ترسترګو کېږي، چې غوښتل یې په خپلو استبدادونو او ظلمونو سره د سیمې ټول هیوادونه په خپلې واکمنۍ پورې اړوند کړي. هغه کم‌وسو او بېوسو کلیوالو او سیمه ییزو خلکو ته د سرونو د منارو په ښوولو دا هیله لرله چې ټول خلک به یې په پوځ کې ورګډ شي او د ده غلامۍ او چوپړ ته به غاړه کښېږدي.

خو کله چې د پاڅونونو لړۍ پیلېږي دا اور دومره پراخېږي چې د ده د واکمنۍ تر لمنو هم غزېږي. په دې توګه: کله چې به نادر په یوه سیمه کې د پاڅون په غلي کولو او خپلو بوخت شو، د بلې سیمې د بغاوت خبر به یې زړه او دماغ ولړزاوه. هغه د ژوند تر پایه له دې پاڅونونو خلاص نه شو. بلکې دا لړلی ارمان یې هم له ځان سره ګور ته یووړ، چې غوښتل یې د خپل حکومت بیرغونه د هر نیول شوي هیواد په پلازمېنه کې اوچت وساتي؛ په دې لنډ کتاب کې یې د ډېرو نادودو او د ویاړلو افغانانو د مبارزو انځورګري شوې ده. لیکوال هم د ناپیلتوب پر بنسټ دغه پېښې رااخیستي او هڅه یې کړې چې خلکو ته حقیقت په رښتیني بڼه وښيي.

د کتاب د آر نوم بشپړه ژباړه (د اتلسمې میلادي پېړۍ په دېرشمو او څلوېښتمو کلونو کې د نادر افشار د استبدادونو پرضد د افغانانو پاڅونونه) کېده، ځینو ملګرو له لنډون څخه په کار اخیستو ورته لاندېنی نوم (د افشاري استبدادونو پرضد د افغانانو پاڅونونه) غوره کړ، هیله ده بشپړ جاج وښندي او له موضوع څخه ډېر لیرې نه وي. په تلو - تلو کې له تاند شاعر او لیکوال ښاغلي عبدالجبار ترنګ (تُرابي) څخه یوه دنیا مننه کوم چې د مسافرۍ په ستونزمنو شرایطو سر بېره یې د دې ژباړې په سمون (تصحیح) کې راسره بشپړه مرسته وکړه؛ همدا راز د صحاف نشراتي مؤسسې له مشر، درانه دوست حمدالله صحاف څخه هم ډېره مننه کوم، چې ددې ژباړې چاپ لګښت ته یې اوږه ورکړه او د چاپ چارې یې په مینه مینه ترسره کړې. دوی ته یوځل بیا کوروداني وایم.

په ادب

**سالم محمد سالم**

۱۳۸۰/ لیندۍ/ ۱۹ ل کال

کوټه - کاسي واټ

# لومړی څپرکی

## د نادرشاه افشار د فیوډالي دولت بنه

### نادر د واک په جوش کې:

د اتلسمې پېړۍ څلورمې او پنځمې لسیزې د نادرشاه افشار د واکمنۍ له مهال سره برابرې دي، هغه دوران چې له فیوډالي وحشیانه ګټه اخیستنو، لوټونو او د خلکو له نیغ چپاو، مالیاتي او ملي ستم، غوسه ناکو ځورونو او نورو ورانوونکو او وحشتناکو وژنو سره مل و.

آذربایجان، ایران، ارمنستان، افغانستان، هند، منځنۍ اسیا او ګرجستان په خپل تاریخ کې تر تېمور وروسته داسې دوره په یاد نه لري.

نادر افشار چې د اتلسمې پېړۍ د لومړۍ نیمایي د ټولنیزو، اقتصادي او سیاسي عواملو زېږنده و، د همدې پېړۍ د دویمې ربعې له پیله د افغانانو او ترکانو پرضد د ایراني خلکو په پاڅونونو کې په مستقیم او فعال ګډون سره خپل استعداد وځلاوه او په ایرانیانو کې یې له ایران څخه د یرغلګرو په وتلو سره ملي نوم وموند.

له شک پرته، نادر د خپلو سیاسي فعالیتونو له پیله حریصانه هدفونه درلوذل، خو د پردیو یرغلګرو په ایستلو سره یې په ایرانیانو کې اعتبار او نفوذ ډېر شو، همدا ټکی سبب شو چې په ۱۷۳۶م کال یې په مغان دښته کې د اووه کسیزې فیوډالي شورا په تشکیل کې دتاج کښېښودنې کومېډي ترسره کړه او تر هغه وروسته یې د نادرشاه په توګه د ایران پر سلطنتي تخت تکیه ووهله.[1]

د نادرشاه حکومت نظامي فیوډالي استبداد یوه بېلګه وه، چې د پاچا حاکمیت کومه پوله نه پېژنده، د شاه سلطنتي شورا چې له لوی وزیر،

قورچیباشي، قولرآقاباشي، ایشیک اقاسي باشي، تفنګچي باشي، دېوان بېګي او د لیکنو له وکیل څخه جوړېده، د صفوي شاهانو پر مهال یې هم وجود درلود. نه یوازې یې ډېر واک نه درلود، بلکې نادر د پاچایی په هماغه پیل کې ددې ټکي په څرګندولو سره چې (غواړي له کوم شریک پرته حکومت وکړي) دا شورا په عمل کې له منځه یووړه.[۲]

نادر د هغو یرغلیزو جګړو په نتیجه کې چې د اتلسمې پېړۍ په څلورمو او پنځمو لسیزو کې یې ترسره کړې، ونه شول کړای ارمنستان، ګرجستان، آذربایجان او د خیوې او بخارا خان مېشتې سیمې، د منځنۍ اسیا، افغانستان، بلوچستان او د مغولي هندوستان ټول شمال غربي ولایتونه او خان مېشتې سیمې په خپل دولت کې ګډې کړي.

ددې هېوادونو ځینې برخې د نادرشاه د دولت په ایالتونو بدلې شوې وې، نورې پاتې هغه هم د (واسالي) هېوادونو په توګه اداره کېدلې.

د نادرشاه دولت د ناپایداره نظامي فیوډالیزم اتحاد و، چې په هغه کې اقتصادي ژوند، خلک او هېوادونه نه سره تړل، هېوادونه او خلک چې د تېر تاریخ او فرهنګ له مخې یې یو له بله توپیر درلود. په زور، مړینې او غوسه ییزو چلندونو سره تړل شوي وو، د یوه فیوډالي دولت په اډانه کې د بېلابېلو هېوادونو مصنوعي پیوند: د پردیو د توند ستم، د بېرحمانه فیوډالي استثمار، مذهبي ځارنو او خونړیو استبدادونو سبب شوی و.

همدغه عمده لاملونه وو چې په نیول شویو هېوادونو کې یې د خپلواکۍ مبارزې وپارولې، دغو مبارزو د نوموړو هېوادونو پر تولیدي ځواکونو ژور منفي اغېز وښانده او د هغوی فرهنګي او اقتصادي بهیرونه یې ودرول.[۳]

## د نادر اقتصادي سیاست او پرضد یې د خلکو راپاړېدنې:

"نادر، په داسې حال کې چې په خپل ټول ځواک یې خپل حکومت ځواکمناوه، د سیمه ییزو نظامي مشرانو حقوق یې محدود کړل او سلطنتي او دولتي ځمکې یې ( له فیوډالانو څخه د دولت له خوا د ورسپارل شویو

ځمکو په اخیستنو) سره زیاتې کړې، هغه د نظامي مشرانو او لوړ پوړو مامورینو د سیاسي او اقتصادي موقعیت او نفوذ ـ کمزورولو او په مرکز پورې یې د ټولو لپاره د "شیعي" روحانیت لوړ قشر متزلزل کړ، همداراز دغو یرغلیزو جګړو به چې بزګران یې تباه کول، د فیوډالانو پانګه په خپل وار کموله، د حاکمې طبقې ډېره برخه چې د نادر له سیاسته ناخوښه وه. (په کراره) د هغه پر مخالفې ډلې بدله شوه."[۴]

خو خلک هماغسې دتېر په څېر بې حقوقه او د مالیاتو ورکوونکو په سیمو پورې تړلي وو او نه یې شول کولای چې په آزاد ډول خپل استوګنځي پرېږدي، دوی به غالباً د نادر په فرمان بېلابېلو سیمو ته کوچېدل.[۵]

د نادر د حکومت اقتصادي بنسټ د نورو فیوډالي ټولنو په شان کوچني کرکري واحدونه او د کسبګرو لږ تولید و.

د بوروکراسۍ لویه دستګاه او ځولس زره کسیز ګوند چې د دولتي ځمکو د ډېرېدو او پر له پسې جګړو له کبله زیات شوی و، په خپل ټول دروندوالي سره د خلکو ، په ځانګړي ډول د بزګرانو پر اوږو فشار وارداوه او د هغوی لپاره ساتل کېده. د بزګرانو لپاره تر ټولو سخت کار د خوراکي موادو، وښو، جامو او جګړه ییزو وسیلو برابرول وو، دا مالیات به هرځل زیاتېدل او کله کله به دا درانه مالیات د سپاهیانو له خوا ټاکل کېدل او اخیستل کېدل.

خلک، په ځانګړي ډول بزګران چې په پیل کې یې له نادر سره د پردیو یرغلګرو پرضد مبارزه کې مرسته کړې وه او بیا یې د سلطنت پر تخت کښېناوه، هیله من وو چې له خپل هېواد څخه به یې د پردیو په ایستلو سره په مالیاتو کې کمی راشي او ژوند به یې ښه شي، خو پر یرغلګرو د ایرانیانو په بري سره نادرشاه او صفوي طهماسب نه یوازې مالیات ټیټ نه کړل، بلکې برعکس یې ناڅکل شوي بېلابېل باج و خراج هم وضعه کړل او لښکرو ته یې د خوړو برابرول هم ورزیات کړل.

په دې توګه کرکري اقتصاد زيانمن شو او پر بېستمنو بزګرانو بېرحمانه فشار راغی.

نادر پر کندهار د لښکرکښۍ پر مهال په کرمان ولايت کې د مالياتو په راټولونه کې دومره زياتي وکړ، چې دا ايالت تر اتو کلونو پورې له قحطۍ سره لاس و ګرېوان و. يوازې لوړه ددې سيمو بدمرغي نه وه، بلکې د باروړونکو حيواناتو او څارويو د نشت له کبله د کرمان ولايت ښځې او نارينه اړ شول چې د نادر اتيازره کسيز لښکر ته له سيستان څخه غلې دانې ولېږدوي.(٦)

د نادر يرغليز سياست؛ د دولت له خوا ده ناوړه ګټه اخيستنې، د بې حسابه مالياتو د اخيستنې او د بزګرانو د مالونو د لېږدونې او د کورونو د ورانۍ سبب شو او دا کار د نادري دولت د ظلمونو پرضد د خلکو د بې ځنډه پاڅونونو لامل شو.

عام وګړي له خپلو استوګنځيو څخه وتښتېدل او له مالياتو ورکولو څخه يې ډډه وکړه، همدا راز د خپلواکۍ لپاره ملي پاڅونونه هم وشول. د اتلسمې پېړۍ په پنځمه لسيزه کې هغه هېوادونه چې په زوره د نادر په دولت پورې تړل شوي وو، له لوی پاڅون سره مخامخ شول، ان د اتلسمې پېړۍ د څلورمې لسيزې له پيله د فيوډالي ګټه اخيستنې پرضد په ډېرو سيمو کې د خلکو مبارزې څرګندې شوې.

ددې دورې له سرچينو څخه ښکاري، چې بزګران او کوچي خلک به چې د ملاماتوونکو او ورانوونکو مالياتو تر فشار لاندې کمزوري شوي وو، دخپلو استوګنځيو تر پرېښودلو وروسته د نورو سيمو له پاڅون کوونکو سره يو کېدل او يا به په غرونو کې پټېدل او لاروهونکې ډلې به يې جوړولې.(٧)

د "عالم اراى نادري" نومي کتاب ليکوال کاږي: په ۱۱۵۰ هـ ۱۷۳۷-۱۷۳۸م کلونو کې مرو ايالت (د بنديانو د زړونو په شان) تش او غلی و. هلته نه کوم کور پاتې و، نه هم سړی.(٨)

همدغه ليکوال په بل ځای کې وايي: کله چې عليقلي خان د سيستان د پاخون د ځپلو لپاره (۱۷۴٦-۱۷۴۷م) کال سيستان ته ننوځي، په حيرانۍ سره ويني چې: کلي او ښارونه له خلکو تش دي.

ځکه ډېرو خلکو د شاه د درنو مالياتو له کبله خواجه نومي غره او کليو ته پناه وړې وه.[9]

د نادري حکومت د مالياتي ستم پرضد يوه مبارزه له (دروغو مدعيانو) څخه د خلکو ملاتړ و، ددې دورې په سرچينو کې له (دروغو) مدعيانو څخه ميرزا زينل، اصلان ميرزا، صفي ميرزا او نور د اتلسمې پېړۍ په څلورمو او پنځمو لسيزو کې ياد شوي دي.[10]

په افغانانو، ازبکانو، ترکمنانو، بلوڅانو، ګرجيانو او ارمنيانو کې ملي او استبدادضد لومړني پاڅونونه زيات شول. ځکه دا خلک په ډېر بد حالت کې وو. دوی د سيمه ييزو فيوډالانو له خوا استثمارېدل او د نادر د دولت له خوا ځورول کېدل او تر مذهبي فشارونو لاندې راتلل.

د نادر پرضد د افغان فيوډال قشر لومړنی خپلواکۍ غوښتونکی پاڅون په هرات کې د ذوالفقارخان ابدالي په مشرۍ په ۱۷۳۰-۱۷۳۱م (۱۱۴۳هـ) کې ترسره شو.

وروسته د ترکمنو، تکه وو، ساروقو، ايرسارو او نورو قبيلو له خوا په خراسان کې په ۱۷۳۴م کال او په همدې کال نور پاڅونونه هم ترسره شول.[11]

د مالياتي ستم له کبله د کرمان خوځښت په ۱۷۳۳ کال په يوه لوی پاخون بدل شو، په همدې کال د همدې سيمې "لارو" خلک هم اوچت شول او ددې ايالت حاکم محمدخان يې وواژه، په قزوين او ګيلان کې هم پاڅونونه وشول. پر وړو پاڅونونو سربېره په فارس او د فارس خليج په ساحلونو کې هم په ۱۷۳۳م کال يو لوی پاخون پيل شو، چې مشري يې د شيخ احمد مدني پر غاړه وه، چې شلو زرو سُني مذهبو عربانو يې ملاتړ کاوه.

په همدې کال د بلوچستان له فيوډالانو څخه يو تن محمدخان بلوڅ د خليج له پنځلسو زرو بلوڅو سره د (آو) قوم له ملاتړ څخه برخمن شو، دوی د خليج له خولې د هند تر پولو غزېدلي وو.[۱۲]

د ۱۷۳۴م کال په پای کې د ملي پاڅون د مشرانو: شيخ احمد او وروسته محمدخان بلوڅ په نيول کېدو سره دا پاڅون سره وپاشل شو.[۱۳]

نادر، فيوډالي پاڅونونو ته دومره په اندېښنه کې و، چې کندهار ته يې تر لښکرکښۍ وړاندې په ايران کې خپل زوی رضاقلي ميرزا قايمقام ته لارښوونه وکړه چې :"يو بشپړ لښکر تيار کړي او له ځان سره يې وساتي، داسې لښکر چې د يوې مياشتې په موده کې هر ښار ته حاضر شي".[۱۴]

تر هغه مهاله چې نادر له پرغلګرو څخه د ايران د خپلواکۍ لپاره جنګېده، نو د ايران ملت يې هم د زړه له کومې ملاتړ کاوه او هر ډول قربانۍ ته چمتو و، خو کله چې ايرانيانو له خپلو پولو پرغلګر ترشا کړل او خپله ټوله سيمه يې خپله کړه او نادر يوازې د خپلې سيمې د پراختيا په هوس جنګېده، ښکاره خبره ده چې خلک دې ډول ناعادلانه جګړو ته چمتو نه وو، بلکې هيله يې درلوده چې ډېر ژر يې هېواد ته سوله راشي، چې وکړای شي په ډاډه زړه خپلو اقتصادي او کرکري چارو ته دوام ورکړي.

خو نادر چې کله د ايران پر سلطنتي تخت تکيه ووهله، سره له دې چې د هرات او ترکيې له ابداليانو او هغو هوتکيانو سره چې پر ايران واکمن شوي وو جګړې روانې وې او ايران يې ډېر نېستمن او وران کړی و، نادر ورځ په ورځ د سيمې د پراختيا په هوس د مالياتو پر څومره والي او د هغو پر اصولو سختۍ زياتې کړې.

د "نادرشاه" نومي کتاب ليکوال لکهارت د نادر له ستاينې سره ـ سره د هغه د پرغليز سياست په اړه ليکي :"نادر د عامو خلکو ښه والي ته پاملرنه نه درلوده، يوازې يې د خپلې امپراتورۍ پراختيا ته پام و او د هېواد خلکو ته يې يوازې ددې لپاره پاملرنه کوله چې پيسې او فورې اړتياوې

ترې لاسته راوړي، کله چې يې د ايران پر سلطنت تکيه ووهله، د هـرات له عثمانيانو، ابداليانو او هوتکيانو سره "پر ايران تـر تسلط وروسـته" اوږدو جګړو خلک ډېر نېستمن کړي وو.

سره له دې چې نادر د هندوستان له فتحې څخه له مليونونو تومـانونو سره راستون شو او کولای يې شول ډېر کلونه د ايـران خلـک لـه ماليـاتو معاف کړي، خو هغه خپلې ډېرې پيسې بېځايه ولګولـې (البتـه تـر مړينـې وروسته) او د ماليـاتو وضعه يې نوره هـم تونـده کـړه، بـزګران او کليـوال خلک د ماليـاتو او نادر ته د جګړه ييز ځواک برابرولو له لاسه پـر مـلا مـات شوي او په تنګ شوي وو.

***د حيرانی خبره ده:*** داسې تېزهوښه سړی څنګه پوه نه شـو، پـه خپلـو دغو کارونو هغه مرغه چې د سرو زرو هګۍ اچوي له منځه وړي؟"[١٥]

هو! دا مرغه چې (د سرو زرو هګۍ) يې اچولې، هغه ملت و، چې پرته لـه دې چې د (شاه) له لاسه ارامه ساه واخلي، د سرونو او مال په قربانۍ سره يې له نادرقلي څخه نادرشاه جوړ کړ.

د نادر د درنو ماليـاتو د فشار او پر له پسې جګړو له کبله تشلاسي بـزګران اړ شول چې دده د سياسـت او واکمنـۍ پرضد لـه هـرې څنـډې د نيوکـې اوازونه اوچت کړي.

د نادر تالانګرې لښکرکښۍ چې غوښتل يـې د فيـوډالي طبقـې د پـانګې لړوالی،چې د بزګري توليدي واحدونو د پاشلتيا له کبله رامنځتـه شـوی و، جبران کړي، چې دا دده د هېواد د اقتصادي پاشلتيا سبب شو.[١٦]

د نادر بريمنو جګړو چې ډېر لګښتونه ورباندې راتلل، د خواريکښو پـراخ قشرونه خوارول. په زوړ سره د بېلابېلو خلکو ايلـول او پر هغـو حکومـت کول، له خواريکښو سره زياتی، وحشـتناک تروروتـه، د خلکـو د خپلواکۍ غوښتنې مبارزې: د ايران او ګاونـډيو هېوادونـو د توليـدي ځواکونـو د زوال سبب شوې.

نادر د اتلسمې پېړۍ د پنځمې لسيزې لــه پيلــه تـر هغـه مهالــه چـې ووژل شو(۱۷۴۷م کال د جون نهمه) په خپله ټوله سیمه کې یوه ورځ هم د خپـل غوسه پاروونکي سیاست پرضد د خلکو له پاڅونونو او مقابلو څخه وزګار نه شو، دې کار يـې پر اعصابو او اروايي وضعې ډېر فشار راوړ.
څـرنګه چې د خپل سلطنت په پای کې په توند فکري اختلال اخته شو، په دې توګه يـې خپل چلند نور هم توند کړ او د لوړرتبه مامورينو وژلــو او بندي کولو ته يې زور ورکړ.
ان د نادر نژدې خپلوان هم د ( ذاتي مينې) له کبلــه لــه پـاڅون کوونکــو سره يووالي ته چمتو شول، په سيستان کې به د نادر د وراره عليقلي خــان اردوځای ته خلک راتلل، د نادر د وحشت پـاروونکو اقدامـاتو پـه اړه بــه يـې ورته خبرونه راوړل، کله چې عليقلي خــبر شـو د ورور ابراهيـم خـان مالونه يـې ضبط شوي او پر ده باندې هم سـل زره تومانــه ماليـات وضعــه شوي دي. نو تصميم يـې ونيو د سيستان له پاڅون کوونکو سره يو شـي. د هغې وېرې او وحشت پرضد چې نــادر هــرځای خپـور کـړی و، د ايـران، بلوچستان، افغانستان، مرو، خبوشان او د نورو ځايونو خلکو پاڅون وکړ.



# د لومړي څپرکي سرچینې:


۱. دولت نادرشاه افشار: د م. ر. ارونووا. ک. ز اشرافیان لیکنه د حمید مومني ژباړه، د تهران پوهنتون چاپ، ۱۳۵۲ل کال، ٦٦ مخ. تاریخ نادرشاهي: محمدشریف تهراني وارد، د رضا شعباني په زیار، ۱۳۴۹ل کال، تهران، ٦۷ مخ.

۲. دولت نادرشاه افشار: ۱۱۵ مخ.

۳. همدغه اثر: ۲۱۳ – ۳۰۷ مخونه.

۴. // : ۳۰۳ مخ.

۵. // : ۱٦٦ – ۱٦۷ مخونه.

٦. لکهارت، نادرشاه: د مشفق همداني ژباړه، تهران چاپ، ۱۳۳۱ل کال، ۱۵٦-۱۵۹ مخونه.

۷. دولت نادرشاه افشار: ۱٦۵-۱٦۷ مخونه.

۸. محمد کاظم: نامه عالم آرای نادري، لومړی ټوک، ۱۹٦۲م کال چاپ، مسکو، تر ٦۸ مخ وروسته. دولت نادرشاه افشار:۱٦٦ مخ.

۹. محمد کاظم: همدا اثر، درېيم ټوک، ۱۹٦٦م کال، چاپ، مسکو ۴٦٦مخ.

۱۰. مهدي خان استرآبادي: جهانكشاى نادري، د عبدالله انوار په زيار، ۱۳۴۲ل کال چاپ، تهران، ۲۱ – ۲۵ مخونه. دولت نادرشاه افشار: ۱٦۹ مخ.

۱۱. دولت نادرشاه افشار: ۱۷۰- ۱۷۱ مخونه. محمدکاظم: لومړی ټوک، ۲۳۲ – ۲۴۱- ۲۴۷ مخونه.

۱۲. همدا اثر: ۱۷۱ – ۱۷۲ مخونه.

۱۳. // : ۱۷۲ – ۱۷۷ مخونه. نادرنامه (تاريخ شاهنشاهي) ۳۱-۳۹ مخونه.




۱۴. دولت نادرشاه افشار: ۱۷۹ مخ.

۱۵. لكهارت: نادرشاه، ۲۳۷ مخ.

۱٦. دولت نادرشاه افشار: ۲۸۸مخ.



# دویم څپرکی

## پر افغانستان د نادر افشار لښکرکښي

### *د خراسان د پاڅونونو ځپل او د هرات خلاصون:*

که څه هم د نادر له خوا د مشهد خلاصون، شازاده طهماسب د نادر تر اغېز لاندې راوست، خو په بدل کې یې د نادر پرضد د هغه د وزیرانو دښمني راوپاروله او هغوی به له لږ فرصت څخه هم د شازاده د ذهن پارولو لپاره کار اخیسته، اخر یې شازاده اړ کړ چې خپلو حاکمانو ته د استرآباد په ګورګانو، مازندرانو او نورو سیمو کې لارښوونه وکړي چې د نادر پرضد د هغوی مرستندوی شي، ان ځینې تاریخ کښونکي کاږي چې د نادر پرضد یې د محمود کیاني مرسته هم جلب کړه.

ملک محمود سیستاني (لومړنی سیمه ییز واکمن) چې کله په (۱۷۲۲م) کال کې ولیدل چې خلکو په هرات او کندهار کې پاڅون کړی او له صفوي دولت څخه یې خپله خپلواکي ترلاسه کړې، همداراز شاه محمود هوتک هم د ایران تر زړه پورې پرمخ تللی دی، نو هغه هم د صفوي دولت پرضد اوچت شو او د اوسني خراسان ولایتونه یې د صفویانو له شتون څخه پاک کړل او په خراسان او سیستان کې یې خپل خپلواک حکومت اعلان کړ. خو په خراسان کې تر پنځه کلن دولت وروسته د نادر له پاڅون سره مخامخ شو، ځکه نادر یو وخت د ملک محمود له لاسه یوه څپېړه خوړلې وه او له دندې شړل شوی و، د شازاده طهماسب په نوم یې پر مشهد برید کړی و، تر مشهد دباندې یې تر سختو خونړیو جګړو وروسته له نادر څخه ماتې وخوړه او تسلیم شو، نادر د طهماسب میرزا په

شفاعت هغه د مشهد روضې یو ګوښه نشین کړ او د هغه ټول کارونه یې ترخارنې لاندې ونیول.

پر همدې مهال د کُردان په خبوشان کې د نادر پرضد اوچت شول، خو نادر هغه وځپل، شازاده اړ شو چې له نادر سره په نرمۍ چلند وکړي او په هغه پسې مشهد ته روان شي. نادر د ۱۱۳۹ هـ (۱۷۲۷م د مارچ ۲۱مه) په نوروز کې مشهد ته د طهماسب میرزا د راتلو تود هرکلی وکړ او امر یې وکړ چې ددې خوښۍ له کبله دې یوه اوونۍ په ښار کې مجلسونه او جشنونه جوړ شي، د طهماسب میرزا د هرکلي مراسم پایته نه وو رسېدلي، چې کردانو بیا د پاڅونونو بیرغونه اوچت کړل، چې د مرو تاتاران او ترکمنان هم ورسره یو شول او یو لوی ځواک یې جوړ کړ. د نادر ورور ابراهیم خان یې په خبوشان کې محاصره کړ.

دغه پاڅون د نادر له خوا غلی کړای شو، خو نادر چې کله مشهد ته راستون شو، د خبوشان د پاڅون اور بیا بل شو. ځینې تاریخ کښونکي په دې اند دي چې دغه پاڅون د طهماسب میرزا په هڅونه ترسره شو او د ساعدلو کردان هم د "کوکرلو" له پاڅون کوونکو سره یو شول. خو نادر ډېر ژر ددې پاڅون مخنیوی وکړ او د نیشاپور پر لوري روان شو. پر همدې مهال د مرو تاتاریانو هم د ملک محمود کیاني په هڅونه په ښورښ لاس پورې کړ، خو نادر ډېر ژر ددې پاڅون اور مړ کړ او مشهد ته راستون شو، څرنګه چې د مرو د تاتاریانو په هڅونه کې د ملک محمودکیاني پر لاس درلودو پوهېدلی و، نو هغه یې له ورونو: ملک محمدعلي او وراره ملک اسحق سره یوځای د ۱۷۲۷م کال د فبرورۍ په ۲۷ مه یا د مارچ پر لسمه ووژل.[1]

میرزا مهدي خان لیکي: محمدخان چوله د همایون (نادر) په امر "ملک محمود" د محمدبېګ مینباشي چوله د وینې په قصاص چې د ملک محمود د ظلمونو له مړو شویو کسانو څخه و، ملک اسحق یې یاسا ته ورساوه او ملک محمد علي یې چې د ملک محمود کوچنی ورور و، نیشاپور ته بهرام

عليخان بيات ته ولېږه، هغه هم د خپل ورور فتح عليخان د وينې په بدل کې دا انتقام واخيست.[۲]

لنډه دا چې څرنګه به په يوه سيمه کې يو پاڅون غلی کېده، بل ځای به يو بل پاڅون پيدا کېده. ( د مشهد ښار د جنوب په درې سوه پنځوس کيلومتری) قاين ښار کې د ملک محمود سيستاني تر وژنې وروسته خلکو پر پاڅونونو لاس پورې کړ او د نادر کسان يې له ښاره وايستل. حسين سلطان چې د ملک محمود له خپلوانو او له سيستاني مشرانو څخه و، د ملک محمود د ورور "ملک کلبعلي" او د ملک محمود وراره ملک لطف علي په ملاتړ يې ددې پاڅون مشري پرغاړه درلوده. نادر د دې پاڅون د ځپلو لپاره د خپل پوځ يوه برخه ورولېږله، خو هغې هېڅ هم ونه کړای شو. نادر اړ شو چې له طهماسب ميرزا سره مل د ۱۱۳۹ هـ کال د ذي الحجې په ۱۷ مه ( د ۱۷۲۷ م کال د اګست په پنځمه) له اتو سوو پوځيانو سره له مشهده د قاين پر لوري روان شي. د قاين د پاڅون مشران تر څه مقاومت وروسته غلي شول، حسين سلطان تسليم شو، خو ملک کلبعلي او ملک لطف علي نادر ته تسليم نه شول. دوی دواړه وتښتېدل او په اصفهان کې له شاه اشرف هوتک سره يو شول.[۳]

ويل کېږي چې د ملک محمود سيستاني زوی فتح عليخان او وراره يې لطف علي کياني اووه کاله د سيستان په خواجه نومي غره کې د نادر د ځواکونو پرضد مقاومت وکړ.[۴]

نادر چې ليدل شاه اشرف د ايران په شمال کې له ترکيې او روسيې سره پر جګړو بوخت دی او هم د کندهار او هرات خپلواک حکومتونه سره ليرې او بېل ژوند کوي او په هغو کې پخواني دښمني هم شته، نو د افغان حکومتونو له دې کورنيو اختلافونو څخه ګټه واخيسته او د شاه طهماسب په ملتيا يې پر هرات بريد وکړ. په لومړي ګام کې يې سنګان او بهدادين کلاوې چې اوسېدونکي يې د هرات د ابداليانو له څانګې وو، محاصره کړې. د سنګان اوسېدونکو سخت مقاومت

پيل کړ. نادر ددې مقاومت له کبله دومره په غوسه شو چې د سنګان کلا تر نيولو وروسته يې امر وکړ چې ټول اوسېدونکي يې بايد له تېغه تېر شي. د بهدادين ( د سنګان د جنوب لويديز په اوولس ميلۍ کې) افغانانو ځانونه له نادر سره جګړې ته چمتو کړل او له هرات څخه يې مرسته وغوښته، چې په نتيجه کې اوو - اتو زرو ابداليانو مرستې ته ورودانګل او سنګان ته نژدې ( د افغانستان - ايران پولو د لويديځ په څلوېښت ميلۍ کې) کتار شول او په هغو جګړو کې چې د دواړو غاړو ترمنځ وشوې، ابداليانو د نادر ځواک ته سخت ګوزار ورکړ، چې نادر شاتګ ته اړ او مشهد ته ستون شو.[5]

د ۱۱۴۱هـ په شوال ( د ۱۷۲۹ م کال د مې په دربيمه) نادر د لښکرکښۍ وسايلو تر برابرولو وروسته د طهماسب په ملتيا د هرات د نيولو په هوډ وخوځېد. کله چې ابدالي افغانان له دې بريد څخه خبر شول، نو د اختلافاتو پر ليرې کولو بوخت شول.

هغه مشران چې پر دې مهال يې د هرات د واک نيولو هڅه کوله دا دي: د عبدالله خان ابدالي زوی الله يار خان او د محمدزمان خان مشر زوی او د احمدخان ورور ذوالفقار خان. الله يار خان د ابدالي ځواکونو عمده مشرۍ او هراتي حکومت ته ټاکل شوی و، رقيب يې ذوالفقارخان فراهي حکومت ته ټاکل شوی و. د هرات ځواکونه د الله يارخان په مشرۍ له هراته د شمال غربي خوا د کافرکلا پرلوري روان شول.

دواړه ځواکونه کافرکلا ته نژدې سره مخامخ شول، همدلته وو چې ابداليانو لس کاله مخکې د محمدزمانخان په مشرۍ ايرانيانو ته د صفي قليخان په مشرۍ ماتې ورکړې وه.

جګړه پيل شوه او ابداليانو په خپل يو بريد کې د ايران نظام پلي (پياده) ځواکونه سره وپاشل، خو د نادرشاه سپاره نظام پر افغانانو سخت بريد وکړ، چې يو ابدالي مشر هم په کې ووژل شو.

په دې اخ و ډب کې حاجي مشکين خان ابدالي ځان نادر ته نژدې کړ او په نېزه يې پر نادر ګوزار وکړ، چې د نادر ښۍ(راسته) پښه يې

ورتېي کړه.[٦]

بله ورځ ابداليانو هريرود ته شاتګ وکړ او د نادر ځواکونه ورپسې شول، تر کوسويه دباندې (يا کهسان سيمه کې چې د هرات د شمال غرب په شپېته ميلۍ کې پرته ده) يوه تونده جګړه ونښته، دا ځل هم بری د نادر د ځواکونو په برخه شو. ابدالي ځواکونه يو ځل بيا جګړې ته چمتو شول او د هريرود د شمال په شپږ ميلۍ کې په "رباط پريان" نومې کلي کې يوه بله وېروونکې جګړه پيل شوه، چې تر غرمې پورې وغزېده او له دواړو غاړو ډېر کسان ووژل شول. ابداليان په پای کې د ښار خوا ته شاتګ وکړ او تر ۴۸ ساعتونو وروسته چې د باد توپان روان و، بله جګړه ونه شوه.

ټاکل شوې وه، چې د الله يار خان لوری به له نادر سره روغه وکړي، خو نادر ټينګار کاوه چې الله يار دې ځان تسليم کړي، پر همدې مهال خبر راورسېد چې ذوالفقار له خپل هوسا وسلوال پوځ سره د فراه له لارې د هرات مرستې ته راروان دی، نادر ددې خبر په اورېدو د خپل پوځ يوه برخه د ذوالفقار د مخنيوي لپاره په ښار کې وټاکله او خپله يې له خپلو ډېرو ځواکونو سره د هرات د لويديځ په پنځه ويشت ميلۍ، شکيبان نومې سيمه کې مورچه ونيوله.[٧]

د فراه ځواکونه د شپې له خوا د الله يار خان له ځواکونو سره يو شول او الله يارخان يوځل بيا ځان جګړې ته چمتو کړ، کله چې د جګړې اور تود شو، نو د ذوالفقار ځواکونو د نادر پر اردوګای بريد وکړ او د نادر د ځواک ټول شته يې د غنيمت په ډول ونيول. جګړه تر ماښامه وغزېده، له دواړو خواوو ځينې کسان ووژل شول، ځينې ورې مهالنۍ جګړې هم وشوې، خو د درېيو زرو تنو ايراني سرتېرو د وينو او ددوو مياشتو پلې مزله په بيه د نادر پر مخ د سولې ور پرانيستل شو او الله يارخان يوځل بيا د هغه ځای پر حکومت پاتې شو.[٨]

**د ذوالفقار پاڅون او پر هرات د نادر دويمه لښکرکښي:**

د هرات په دفاع کې د ذوالفقار ګډون د هرات د خلکو، په ځانګړې توګه د ابداليانو په نظر د هغه ملي اعتبار او حيثيت نور هم لوړ کړ، ان تر دې چې الله يارخان په ابدالي طايفه کې د ذوالفقار د زياتېدونکي اعتبار له کبله پر ځان هم وويرېد او د ۱۱۴۳ هـ ۱۷۳۰ م کال د دوبي يوه ورځ د ښکار په پلمه له هراته ووت، کله چې کافرکلا ته نژدې شو، نو ذوالفقار ته يې يو ليک وليکه چې: غواړم له تا څخه د خپل پلار د وينې بدله واخلم، دا دی زه مشهد ته ځم او نادر له دې خبرې خبروم چې ته يې پرضد پاڅون کوې، زه به د يوه اردو په ملتيا پرتا بريد وکړم.[۹]

پر دې مهال نادر په اذربايجان کې پر جګړه بوخت و، د نادر ورور او د حکومت مرستيال ابراهيم خان په مشهد کې د الله يارخان ښه هرکلی وکړ. کله چې د الله يارخان له خولې د نادر پرضد د ذوالفقارخان له پاڅون څخه خبر شو، نو د مشهد په ټينګولو او ساتلو يې پيل وکړ.

ذوالفقارخان د ۱۱۴۳ هـ کال د محرم مياشتې په لومړيو کې اته زره کسه پر مشهد ورخوشې کړل او د نادر ورور ابراهيم خان ته يې تر مشهد دباندې په ټولو جګړو کې ماتې ورکړه.[۱۰]

ابراهيم خان يوه ورځ له "کوه سنګينه" پر جګړه لاس پورې کړ. افغاني لښکرو د ذوالفقار خان په مشرۍ په توندو بريدونو سره د هغه پوځ دړې وړې کړ، چې د دښمن د وسلوال پوځ قومندان باقرخان ټپي شو. افغاني لښکرو د دښمن پوځ وځغلاوه او خپله ورپسې شوې.

ډېرو ايراني پوځيانو د وېرې له کبله ځانونه ښاه ګانو ته واچول او له منځه لاړل، يوازې ابراهيمخان وکړای شول، ځان ښار ته ورسوي او د بريد کوونکو پرمخ دروازه وتړي[۱۱] ذوالفقارخان ښار تر ټينګې محاصرې لاندې ونيو. محمدکاظم ليکي: د جګړې په وروستۍ ورځ د (۱۱۴۳ هـ کال) د محرم په (۱۳) مه د مشهد مشرانو او د نادر زوی رضاقلي ميرزا نادر

ته يو ليک وليکه او ژر يې آذربايجان ته واستاوه او له نادر څخه يې مرسته وغوښته.

د ذوالفقار ځواکونه څو شپې په پر له پسې ډول د مشهد کلا پر شا و خوا راوګرځېدل، چې د ننوتو يا هم بريد لار پيدا کړي، خو هېڅ يې ترلاسه نه کړل. يوه ورځ يې د کلا په شا و خوا کې څو تنه ونيول او له هغوی څخه يې د معلوماتو غوښتنه وکړه، اخر څرګنده شوه چې خلک د نادر راتلو ته سترګې پر لار دي او لس ورځې کېږي چې دا موضوع نادر ته رسول شوې ده. ذوالفقار خان دا موضوع د لښکر له مشرانو سره شريکه کړه، اخر پرېکړه وشوه چې بايد ډېر ژر هرات ته ستانه شي. په پای کې ابدالي ځواکونه روان شول او ډېر ژر هرات ته ورسېدل او د نادر د عکس العمل په انتظار يې د هرات د برجونو پر ځواکمنولو لاس پورې کړ. کله چې نادر د ذوالفقار له سرکښۍ او پر مشهد د ابدالي ځواکونو له بريد څخه خبر شو، نو له خپلو نظامي مشرانو سره يې پر مشورو پيل وکړ. په پای کې تصميم ونيول شو، چې بايد ډېر ژر مشهد ته ستانه شي، نادر له خپلو ځواکونو سره مشهد ته ستون شو او ويل کېږي دا اووه مزلونه يې په يوه منزل کې ووهل.[۱۲]

کله چې د اصفهان پولو ته ورسېدل، نو نادر ته د رضاقلي ميرزا بل زېرى هم ورسېد، چې د مشهد د محاصرې پرېښودل و، نادر يوڅه سوړ شو او څه موده يې ارام وکړ او بيا بېرته خراسان ته روان شو. کله چې مشهد ته ورسېد، نو خپل ورور ابراهيم خان ته يې ګواښ وکړ چې هرکلي ته يې رابهر نه شي، ګنې وبه وژل شي. ابراهيم خان هم ابيورد ته لاړ.

نادر مشهد ته راغی، هغه کسان يې وځپل چې له ابداليانو سره يې په جګړه کې له ځانه کمزوري ښودلې وه او هغو کسانو ته يې ډاډ ورکړ چې خپل پلرونه يا اولادونه يې له لاسه ورکړي وو.

نادر خپل يو شمېر پوځيان رخصت کړل، چې خپلو کورونو ته لاړ شي او هرڅومره چې کولای شي خپل اسونه چاغ کړي، وروسته د ايرساري،

تکه وو، ترکمنو، یموتو او ساروقو قبیلو د پاڅون غلي کولو لپاره ابیورد او مرو ته روان شو.[۱۳]

نادر، د ترکمنو قبیلو تر غلي کولو وروسته امر وکړ چې پر هرات دې د لښکرکښۍ لپاره خواړه او نور اړتیا وړ مواد تیار شي، ددغو موادو تر برابرېدو وروسته له ۳٦زره کسیز پوځ سره د هرات پر لوري روان شو.[۱۴]

کله چې د نادر پوځ خوافو ته ورسېد، نو نادر خپل لږ پوځ د محمدبېګ مروي په مشرۍ قاین ته ولېږه او د یزد او کرمان د حاکم ویردي خان افشار لپاره یې یو لیک هم ولیکه او کرمان ته یې ولېږه، چې هغه له خپل پوځ سره مل په قاینات کې له محمدبېګ مروي سره یو شي او له هغه ځایه بیا د فراه خوا ته حرکت وکړي. کله چې ذوالفقارخان خبر شو نادر له خپل لوی پوځ سره هرات ته رانږدې کېږي. نو د ښار په شا و خوا کې استوګن ابدالیان یې ښار ته ولېږدول او د ښار تر ځواکمنولو وروسته د نادر د مقابلې لپاره چمتو شو. دواړې لښکرې په کوهسان (کوسویه) نومې سیمه کې سره مخامخ شوې، په هغو جګړو کې چې کوهسان ته نژدې په جوی نقره نومې سیمه کې سره ونښتې، د ذوالفقار پوځ ډېر تلفات ورکړل، څکه د محمدکاظم په وینا د ذوالفقار پوځ (د طلاق پر صیغې قسم یاد کړی و چې د ژوند تر وروستي حده به پر شا نه شي). په دې توګه ابدالي لښکرو چې له پیله یې برید پیل کړی و، د مړینې له وېرې پرته ځانونه د نادر شل قدمیو ته چې د خپل پوځ په منځ کې و، ورسول. پر دې مهال د نادر د توپخانې غږ اوچت شو او په نیم ساعت کې یې اووه اته زره افغانان په خاورو او وینو ولړل. محمدکاظم وایي: ( افغانانو له مړینې څخه وېره نه کوله، بلکې په جګړه کې لا تودېدل).(۱۵)

د محمدکاظم په وینا: اخر ذوالفقار د شلو زرو تنو ټپیانو او مړو تلفاتو تر ورکولو وروسته شاتګ ته اړ او ښار ته راستون شو او خپلو پوځیانو ته یې لارښوونه وکړه چې د ژوند تر پایه د ښار ساتنه وکړي، نادر هم له خپلو

پوځیانو سره له جوی نقره سیمې څخه وخوځېد او د پل مالان پر لوري روان شو.

پل ماران ته لا نه و رسېدلی، چې د شاه حسین هوتک له اړخه ذوالفقار ته خبر ورسېد چې د کندهار دوولس زره کسیز پوځ د ابدالیانو د مرستې لپاره هرات ته روان دی، تر دې زېري وروسته د علیمردان خان ابدالي له خوا چې د فراه حاکم و، بل خبر هم راغی چې له فراه څخه اته زره کسیز لښکر هم ښارته رانیووزي. ابدالي پوځیانو او مشرانو په دې خوښۍ نغارې وډنګولې او یوې بلې خونړۍ جګړې ته چمتو شول.[١٦]

اروابناد غبار لیکي چې دا وخت سیدال خان ناصر له کندهاره له درې زره کسیز سپاره او پیاده پوځ سره د هرات مرستې ته راورسېد، دې مشهور سرتېري د شپې په تیاره کې پر نادري لښکرو وېروونکی برید وکړ، چې د هغه له کبله د ایران پوځ په وېره کې شو او ډېر تلفات یې ورکړل، نادر اړ شو چې د جګړې له ډګره د (تحت صفر) لوړې برخې ته پناه یوسي او هلته د وسلوالو کسانو یوه کړۍ جوړه او پر دفاع پیل وکړي، د هرات او کندهار لښکرو دوه ورځې نور هم دښمن تر پر له پسې ګوزارونو لاندې ونیو، خو د سختې ژلۍ او باران اورېدو له کبله جګړه بنده شوه.

ذوالفقارخان په ښار کې دننه یوه جرګه جوړه کړه او له مشرانو څخه یې ژمنه واخیسته، چې د ژوند تر وروستي حده به جګړه روانه ساتي، وروسته یې یوه تونده او عمومي حمله پیل کړه، نادر ډېره هڅه وکړه چې د توپ او ټوپکو د ډزو تر باران لاندې ددې برید مخنیوی وکړي، خو ویې نه شول کړای، دېته اړ شو چې یوځل بیا شاتګ وکړي.

افغانانو ډېر ژر (ساق سلمان) کلا د خپل دویم مرکز په توګه وټاکله او له هغه ځایه یې پر دښمن ګوزارونه کول او بېرته ستنېدل. نادر هم اړ شو چې یو غوځ او عمومي برید پیل کړي.

نو له توپخانې سره راوړاندې شو، چې یو کار ترسره کړي خو هیڅ هم ونه شول، د هرات لښکرو نوی برید وکړ او له شمس آباد کلي څخه جګړه

پیل شوه، خو د دښمن توپخانې د افغانانو درې زره تنه برید کوونکي سره وپاشل، چې په رښتیا هم دا تلفات ډېر درانه وو، ځکه د افغانانو ډېر جنګیالي کسان په کې له منځه لاړل.[۱۷]

دویمه جګړه تر ښار دباندې په پوزه ګفترخان نومې سیمه کې وشوه، چې له دوارو غاړو ډېر کسان په کې ووژل شول، محمدکاظم لیکي: ( په دې ورځ هم سخته پوځي جګړه وشوه، چې له دوارو غاړو ډېر کسان ووژل شول، خو مخالفین (ابدالیان) تر وړاندې نور هم اورني شول او مېړانه یې وښووده، ته وا د کلا له برجونو څخه د خپلو ماشومانو او کورنیو له ننداریې پر غیرت راغلي او ځان ته ارزښت نه ورکوي. لکه لمر چې په حجاب کې پټ شي، دواړې خواوې له ماتې سره ستنې شوې).[۱۸]

دریمه جګړه هم د لومړنیو ورځو په شان په هماغه توندی سره پیل شوه، چې ذوالفقارخان د مجهزې توپخانې د نه لرلو له کبله د ښار پر لوري شاتګ ته اړ شو، نادر خپلو پوځونو ته "مالان" پول د لښکرځای په توګه وټاکه او لارښوونه یې وکړه، چې د ښار شا وخوا سیمې دې تر "اوبه" او "شافلان" سیمو پورې وپلټي او لښکر ته دې خوراکي او نور اړتیا وړ مواد برابر کړي.

په دې وضعه کې یو لوی خان له درې زره کسیز پوځ سره هرات ته راننووت او د دوست پرځای له دښمن سره یوځای شو، دا سړی هماغه دلاورخان تایمني و، چې وړاندې یې د نادر له لښکرو سره جګړې کړې وې او بیا د کندهار دربار ته تللی و او هلته یې عزتمن ژوند درلود. دغه سړی له شاه حسین هوتک څخه خوابدی او د هغه د دولت د ماتولو په هڅه کې شو، څرنګه چې په خپله یې ددې کار ځواک او توان نه درلود، نو نادرافشار یې وټاکه. ویل کېږي چې د لاورخان یوه ښایسته لور درلوده او شاه حسین غوښتل چې ورسره واده وکړي، خو دلاورخان ونه منله او خپله لور یې بل چا ته ورکړه، وروسته د شاه حسین د غچ له وېرې هرات ته وتښتېد او له خپل ځواک سره چې له غور څخه یې برابر کړی و،

له نادر سره یوځای شو. له دښمن سره د دلاورخان یوځای کېدو نادر ته نور ځواک هم وبانښه.[۱۹]

نادر، ښار محاصره کړ او د خپل پوځ ځینې برخې یې د ښار د حاکمانو په توګه وټاکلې، چې یو کس هم له ښاره وتلو یا ننوتلو ته پرې نه ږدي.

څرنګه چې یې د ښار په لویدیځ کې د "نقره" د مورچل ساتلو ته لس زره تنه او لس زره تنه نور یې د ختیزو مورچلونو ساتنې ته وټاکل او په خپله یې اردوخان نومي کلي کې سنګر ونیو، د نادر پوځونو به د خلکو مالونه او رمې چې ځړ ته به یې بېولې، لوټولې.

مجمد کاظم لیکي: "کله چې به افغانانو خپلې رمې ځړ ته ابستلې، نو وسلوال به د باز په شان له یمین او یسار څخه راتلل، اسونه، اوښان او پسونه به یې لوټل، له بله پلوه به یې دېر (قزلباش) افغاني غازیان په ګولیو وژل او هره ورځ به د اخ و ډب بازار تود و".[۲۰]

د ۱۷۳۱م کال یوه ورځ ذوالفقارخان تصمیم ونیو چې یو غوځ برید وکړي، نو له خپلو لږو لښکرو سره له ښاره ووت او د نادر پر مورچل یې برید وکړ، نادر په سختۍ سره دفاع وکړه، پر دې مهال د ښار په شرقي برخه کې ټاکل شوې ډله د نادر مرستې ته راورسېده او دواړې خواوې سره ونښتې. څرنګه چې د ماتې خطر پیدا شو، نو افغانان راستانه شول او د تورو په واسطه یې په دښمنانو کې ځان ته لاره خلاصه کړه، په دې توګه افغانان یوځل بیا په ښار کې محاصره شول او نادر د محاصرې کړۍ لا تنګه او تونده کړه، خو افغانان بیا هم اړ وو چې هره ورځ له ښاره ووځي او د خوراکي او نورو اړتیا وړ موادو د ترلاسه کولو لپاره د تورې په واسطه د دښمنانو له منځه تېر او راستانه شي.

په همداسې یوه برید کې افغاني ډلې "کرخ" ته د راستنېدو په لار کې د دښمن له پوځ سره مخامخې شوې او سخته جګړه ونښته، چې افغانانو ډېر درانه تلفات ورکړل. په دې توګه د دواړو نامساوي ځواکونو ترمنځ

څلور میاشتې جګړه روانه وه او د هرات خلک د غلې له قحطی سره مخامخ شول. په داسې حال کې چې دښمن تر ایرانه پورې د ارزاقو غزېدلې مواصلاتې لار په لاس کې درلوده او بېغمه جنګېدل.

پر دې مهال سیدالخان ناصر له خپل پاتې پوځ سره د خوراکي او نورو اړتیا وړ موادو د ترلاسه کولو لپاره له ښاره ووت، خو بېرته یې ونه کړای شول ښار ته راستون شي. له دې کبله یې د اسفزار، فراه او کندهار لاره ونیوله.

ذوالفقارخان چې پردې پېښو سربېره یې د ابدالیانو نه یووالی او د دښمن ګوزارونه لیدل، نو یوه جرګه یې جوړه کړه او ویې ویل: د نادر په شان له یوه ځواکمن او واکمن دښمن سره سره زموږ نفاق د هرات د ماتې او سقوط سببېږي، نو تاسې چې ددې پېښې د مخنیوي لپاره څه اټکلوئ، زه به ستاسو پر پرېکړې قناعت وکړم. د الله یارخان پلویانو چې د جرګې اکثریت وو، وویل: موږ غوره دا ګڼو چې ته الله یارخان ته چې د نادر په پوځ کې دی، خپل حکومت وسپارې. ذوالفقارخان ځواب ورکړ: زه د مشرانو له مشورې سرغړونه نه کوم او د هېواد خیر ته د خان تر خیر ترجیح ورکوم. وروسته د نادر پوځ ته یو پلاوی لاړ او د ښار د خلکو له خوا یې پیغام ورکړ چې ددې وینې تویېدنې نتیجه څه ده؟ که تاسو هرات غواړئ، خپل دوست (الله یارخان) موږ ته راواستوئ چې د ښار واک ورکړو.

نادر دا شرط په بېړه ومانه او الله یارخان یې په دې شرط هرات ته ولېږه، چې دده اطاعت به کوي.

خو الله یارخان چې کله هرات ته ورسېد، د ذوالفقارخان او د ښار د خلکو هرکلی یې ولید، نو د ذوالفقار خوا یې ټینګه کړه او د نادر له اطاعت څخه یې سرغړونه وکړه او جګړې یې روانې وساتلې.[21]

**د فراه فتحه او د هرات برخليك:**

پر همدې مهال ذوالفقارخان خبر شو چې نادر مخكې له مخكې د فراه د نيولو لپاره پوځ تيار كړی، نو ډېر ژر يې عليمردان خان له دريو زرو كسانو سره فراه ته ولېږه او لارښوونه يې وكړه چې :" د قزلباشو په دفع كولو او د كلا په ساتنه كې هڅه وكړي، فراه ښار وساتي او كله چې يې اړتيا ډېره شوه نو له حسين شاه څخه دې مرسته وغواړي. په مېړانه دې ګامونه اوچت كړي او په ګړني ډول يې د كلا ساتنې په اړه احتياط او پوځي توب وروښود او نيمه شپه يې له هغې خوا چې شا و خوا يې له قزلباشو پوځيانو تشه وه، خپل ورور عليمردان خان(؟) له دريوزرو كسانو سره د لوټونې لپاره د فراه دارالرفاه ته ولېږه".[۲۲]

عليمردان ډېر ژر د امام ويردي بېګ او محمدبېګ مروي تر راتلو وړاندې ځان فراه ته ورساوه او د كلا د دېوالونو او برجونو په ټينګولو او د ژورو كندو په كيندلو يې پيل وكړ. د هغه ځای لزګيه طايفې ته يې ډېر انعامونه وركړل او د نادر پرضد يې جګړې ته وهڅوله. ډېره موده نه وه اوښتې چې امام ويردي بېګ د اتو زرو پوځيانو، څو توپونو او نژدې پنځوسو زنبوركو اوښانو په ملتيا (تون) ته ورسېد، همدا راز د سيستان حاكم مصطفى خان او لطف عليخان كياني هم له خپلو څلورو زرو پوځيانو سره له نادر سره يو شول.[۲۳] دواړه پوځونه له فراه څخه د كاه كلا ( يا لاش او جوين) له لارې روان شول.

دا ځواكونه د (۱۱۴۳) ه كال د ذي الحجې مياشتې په ۲۸ مه نېټه د ده نو په سيمه كې ( چې اوس په نو ده مشهوره ده) د فراه له مركزه د جنوب پر خوا څه له پاسه پنځه لس كيلومتره ليرې لاړل، له دې خوا د ذوالفقارخان ورور عليمردان خان ابدالي او احمدخان له خپلو ځواكونو سره چې (د محمد كاظم په وينا شلو زرو تنو ته رسېدل) په مقابله پيل وكړ.

په كاهدانك كې د دواړو غاړو ترمنځ سخته جګړه ونښته، چې په نتيجه كې د كرمان د ټوپكوالو مشر او محمدبېګ مروي ووژل شول.[۲۴]

د جهانکشای نادري نومي کتاب په (۱۵۵) مخ کې د محمدبېګ مروي پرځای محمدسلطان مروي لیکل شوی، چې سموالي ته نژدې دی. څکه نن د اسفل غره په جنوب کې د سلطان میر (سلطان مروي) په نامه یو زیارت شته چې د هغه ځای خلک ډېر ورته ارادتمن دي.

د اسفل غره (اشپل کوه) تر شا د دواړو ځواکونو ترمنځ جګړه روانه وه، د محمدکاظم په وینا: " افغان ډلو په هغو ورځو کې داسې جګړه وکړه، چې چا تراوسه داسې زړورتیا نه وه لیدلې".[۲۵]

محمدکاظم لیکي چې امام ویردي بېګ تر دې جګړې وروسته امر وکړ چې نظامي مشران دې د ده د ملاقات لپاره په کشیک خونه کې سره راټول شي او د (کورنش) مراسمو له پرځای کولو وروسته دې خپلو نظامي دندو ته دوام ورکړي. نظامي مشران چې هریو د خپلې سیمې خان او فیوډال و، د امام ویردي په دې کار خوابدي شول، نادر ته یې یو توطیه ییز لیک ولیکه او هرات ته یې ولیږه، چې ګواکې امام ویردي بېګ د پاخون خیال لري، د هغه د بېغورۍ له کبله دوه نظامي مشران او نور ډېر سرتېري له فراهیانو سره په جګړه کې ووژل شول.

نادر ددې لیک په لوستلو خپل ورور ابراهیم خان ته چې په مشهد کې و امر وکړ چې فراه ته لاړ شي او د هغه ځای د لښکرکښۍ او تسخیر واکې په لاس کې واخلي. ابراهیم خان فراه ته لاړ او امام ویردي بېګ یې بندي کړ، وروسته د نادر ځواکونو د ابراهیم خان په مشرۍ پر مدافعینو برید وکړ چې خونړۍ او وېروونکې جګړه ونښته. یوشمېر فراهیان ووژل شول او د یو زرو پنځه سوه تنو په شا و خوا کې یا تېپانٔ یا هم اسیران شول، علیمردان خان اړ شو چې د ښار له دننه د نادر له پوځ سره جګړه روانه وساتي او مرستې ته په تمه پاتې شي.[۲۶]

د نادر لښکر هم وړاندې راغی او په "مزرعه ویس" سیمه کې چې له فراه سره یې یو میل واټن درلود: ( او د میرزا مهدي خان په وینا په قمر(؟) کلي کې یې (چې په ظاهره به د "محمدکلا" په توري کې تېروتنه

وي) هملته اردوځای جوړ کړ، د دولت مرستیال ابراهیم خان سوچ کاوه چې جګړه او د فراه ښار فتحه به ډېر وخت ونیسي، نو د یوې کلا او برجونو په ودانولو یې پیل وکړ.

فراهیانو چې ولیدل . . دښمن کلا او برجونه ودانوي، نو له پوځي وسایلو او ځواک پرته یې په ډله ییز ډول وربانديې برید وکړ. خو د (یو زرو ځلور سوو) تنو مړو په ورکولو سره، بې له ګټې ښار ته راستانه شول او دېوالي جګړې یې روانې وساتلې.

همداراز د فراه ځینې مشران د مرستې لپاره کندهار ته شاه حسین هوتک ته لاړل، په کندهار کې مغرضو فیوډالانو زاړه قبیله یي مخالفتونه راژوندي کړل، شاه حسین یې له ذوالفقارخان او علیمردان سره په مرسته کې دوه زړی کړ. خو بیا هم شاه حسین هوتک ( په ظاهره دوه زره) کسیز پوځ د لعل محمدخان په مشرۍ د هرات او فراه خوا ته ولیږه، د شاه حسین هوتک نظامي فیوډالانو پوځ ته لارښوونه وکړه ( چې د لارې په اوږدو کې هرځای تم شي، چې په ارامۍ او ځنډ سره لاره ووهي).[۲۷]

په دې توګه د کندهار مرستندوی پوځ د ذوالفقارخان تر ګړندۍ غوښتنې وروسته تر اووه میاشتنې مزله وروسته فراه ته ورسېد او دا هغه مهال و چې کار له کاره تېر شوی و، ځکه ذوالفقارخان او د هرات خلکو د خوراکي او نورو اړتیاوړ موادو پر کمښت سربېره دیارلس میاشتې په مېړانه له خپله ښاره دفاع وکړه.

اخر د اوږدمهالي محاصرې له کبله د ښار لوږې، نېستۍ او خواریو خلک ډېر وځورول او له بهره بله مرسته هم ورسره نه کېده، د ښار ځینو مشرانو د ذوالفقار له خبرتیا پرته نادر ته پیغام ولیږه، که عبدالغني خان الکوزی بېرته ښار ته راشي او نادر د سولې شرایط ومني، نو ښار به د نادر پوځ ته پرانیستی وي، ذوالفقار خان هله له دې خبرې خبر شو چې عبدالغني خان او نور ملګري یې ښار ته راننوتي وو او ناکل شوې وه چې دواړه خواوې به لوظنامې لیکي او لاسلیکوي به یې هم.

او هغه هم له الله یار خان سره چې اووه میاشتې مخکې د نادر له پوځ څخه بېل شوی او ښار ته راغلی و او د نادر پرضد یې جګړې کولې، نو د شپې له خپلې کورنۍ سره له ښاره ووت او کندهار ته لاړ.

خپل ورور علیمردان ته یې خبر ورکړ چې باید له فراه څخه کندهار ته راشي، علیمردان هم په یوه شپه له ښاره ووت او کندهار ته لاړ، خو له بده مرغه چې ذوالفقار له خپلو ورونو سره د دښمنانو د بدویلو له کبله د شاه حسین زندان ته ولوېد او الله یارخان د ملتان خوا ته لاړ.[۲۸]

سبا سهار چې کله ابراهیمخان د فراه د سردارانو او مشرانو له تېښتې خبر شو، نو د هغو په‌خارنه یې پیل وکړ، د ابراهیمخان پوځونو د تښتېدونکو خلکو زر کورنۍ چې له ښاره وېرې لیرې هم نه وې، لوټ او بېرته ستنېدو ته اړې کړې.

د ابراهیم خان پوځونو بیا هم غوښتل چې تښتېدونکي وڅاري، خو د کندهار له مرستندوی ځواک سره مخامخ شول، سخته جګړه ونښته، ابراهیم خان ښار ته پر شاتګ اړ شو. وروسته فراه ښار ته ننوتل او بیا په هرات کې نادر ته د ښار د فتحې خبر ورسېد.

نادر فرمان ورکړ چې فراه دې باقرخان لزګي فراهي ته وسپارل شي او ابراهیمخان دې له پوځ سره هرات ته راشي. ابراهیمخان هرات ته ورسېد، نادر د ملک محمود سیستاني د ځواک سپه سالار پیرمحمد ته هرات وسپاره، دې سړي له نادر سره د مشهد د دروازو په پرانیستنه کې مرسته کړې وه. نادر خپله مشهد ته ستون شو.[۲۹]

نادر د خپل زړه د ډاډه کولو لپاره تصمیم ونیو، چې له هرات او فراه څخه دې ټول ابدالي مشران لیرې کړل شي، نادر د عبدالغني خان الکوزي (د احمدشاه دراني ماما) او نورمحمد خان غلزي په ګډون خراسان، مشهد او دامغان ته شپږزره کسان تبعید کړل، خو په دې ترخ کې یې د ابدالي قبیلې ځینې مشران لکه عبدالغني خان خپل پوځ ته جلب کړل.[۳۰]

## د کندهار د نیولو لپاره د نادر لښکرکښي:

نادر تر تاجپوښۍ وروسته په ۱۷۳٦ م کال د ایران د بختیاري قبیلې د ځپلو لپاره اوچت شو او هغه وخت چې د دې قبیلې د پاڅون کوونکو په ځپلو بوخت و، نو د اصفهان حاکم ته یې امر وکړ، چې پر کندهار د لښکرکښۍ لپاره له خلکو پیسې او نور اړتیا وړ مواد راټول کړي. کارکوونکي نه یوازې په اصفهان، بلکې په بېلابېلو ښارونو کې د پیسو او نورو جګړه ییزو ځواکونو او توکو پر راټولونه بوخت شول، له همدې کبله د ایران خلک یوځل بیا له اقتصادي کمزورۍ سره مخامخ شول.

نادر تصمیم ونیو چې د کرمان او سیستان له لارې د کندهار پر لوري لښکرکښي وکړي، څرنګه چې د لارې ډېره برخه یې دښته وه، نو امر یې وکړ چې: لومړی دې د "لوت" دښتې بېلابېلو منزلځایونو ته خوراکي مواد او نور توکي ولېږدول شي او د لښکر د بارونو لېږدونې ته دې د کرمان له خلکو څاروي بېګار شي، د شاه کارکوونکو به په ښار کې کاروانونه هم پیاده کول او د هغوی حیوانات به یې په بېګار ورځخه بیول. د خوارو کلیوالو څاروي خو پر ځای پرېږده.

د نادر کارکوونکو په کرمان کې د خوراکي او نورو موادو په راټولونه کې دومره زیاتی وکړ، چې دا ایالت تر اتو کلونو له قحطۍ او لوږې سره لاس و ګرېوان و.[۳۱]

نادر د (۱۱۴۹) هـ کال د رجب میاشتې په (۱۷) مه (د ۱۷۳٦م کال د نومبر په ۲۱ مه) له اتیازرو تنو پوځیانو سره چې ډېر یې سپاره وو، له اصفهان څخه د کندهار پرلوري حرکت وکړ. سربېره پر دې د هرات بېګلربېګ پیرمحمد ته هم دنده ورکړل شوې وه، چې له خپل څو زره کسیز پوځ سره د مکران او بلوچستان د مشرانو محبتخان او الیاس خان تر ځپلو وروسته په کندهار کې د نادر له ځواکونو سره مل شي.

نادر کرمان ته تر رسېدو وروسته د ملک محمود سیستاني زوی فتح علیخان کیاني ته یو ګواښوونکی پیغام ولېږه چې د سیستان پوځ دې د

هغه ځای په پولو کې د نادر له پوځ سره یو شي، بیا د (بم) له لارې د سیستان پر لوري روان شو.

نادر د (۱۱۴۹) هـ کال د شوال میاشتې په دویمه (۱۷۳۷م کال د فبرورۍ په دریمه) له خپل پوځ سره سیستان ته راغی، د لارې د توښې او د پوځ د نورو بارونو د لېږدونې لپاره یې د اوښانو تر برابرولو وروسته، تر شپاړلس ورځني مزله او له دلارام څخه تر تېرېدو وروسته د هماغې میاشتې په اتلسمه نېټه د هلمند راسته ساحل (ګرشک) ته ورسېد او تر لږې جګړې وروسته یې دا ځای له غلزي ځواکونو څخه ونیو.[۳۲]

دلته نادر د خپل پوځ یوه برخه ددې سیمې د ځمکوالو لوټونې ته او یوه برخه یې د خلکو د مالونو پر راټولولو ماموره کړه او خپله له خپلو پاتې ځواکونو سره د کندهار د ارغنداو پر لوري روان شو او په کوه شاه مقصود ( د کندهار په خاکریز سیمه کې چې د ښار د شمال- لویدیځ په دېرش میلۍ کې پرته ده) تم شو. همدلته وو چې سیدالخان ناصر او یونس خان هر یو له اتو زرو پوځیانو سره د شپې له خوا له ښاره ووتل او د نادر پر ځواکونو یې ورودانګل. خو څرنګه چې د نادر د ځواک د ابدالي برخې مشر عبدالغني خان له دې برید څخه خبر و، نو د کندهار د جنګیالیو برید یې شنډ کړ او هغوی یې له ډېرو تلفاتو سره شاتګ ته اړ کړل.

سبا ته د نادر ځواکونه له ارغنداو څخه تېر شول او څو ورځې وروسته یې په شېرسرخ (سره زمري بابا) کې: "د ښار د شمال - ختیځ په دوه - درې میلۍ کې" اردوځای جوړ کړ.[۳۳]

د ښار خلکو د شاه حسین هوتک په امر د ښار دروازې د نادر پر مخ وتړلې او لس میاشتې یې په کلکه دفاع وکړه، کله -کله به خلک د شپې له خوا د یرغلګرو د بریدونو له کبله ځورول کېدل، نادر چې ولیدل له یوې خوا ځواکمن برجونه او غر د ښار ساتنه کوي، نو پوه شو چې نیول یې دومره ژر نه شي کېدی. نو د ښار په شاو خوا کې یې د خپلو اردوځایونو په پراختیا او ودانولو پیل وکړ او د ښار سیمه ییز خلک یې بېګارۍ ته اړ

کړل او د لویو دېوالونو، ځواکمنو برجونو، سرپوښلو بازارونو، جوماتونو، حمامونو او په هغه سیمه کې یې د بېلابېلو ادارو پر جوړولو پیل وکړ، چې د (نادر آباد) په نوم یې یو ښارګوټی جوړ کړ. (۳۴)

نادرآباد د یوه ځواکمن دېوال بڼه درلوده، چې د کندهار پر شا و خوا راتاو شوی و او د دېوال تر هرو سلو ګامونو وروسته لوی - لوی برجونه جوړ شوي وو، چې د ښار پر خوا ډزې ترې وشي، نو ښار یې په سخته اقتصادي محاصره، په ځانګړې توګه د خوراکي موادو په نشت کې ساتلی و او دا هغه چلند و چې نادر د بغداد د محاصرې پروخت ترسره کړی و. (۳۵)

په پای کې د شاه حسین د اړوندو کسانو د یوه تن (داد خان یا دادوخان) د خیانت له کبله د نادر ځواکونو ته ښار ته د ننوتو لار ونبودل شوه، نادر هم د (۱۱۵۱) هـ کال د ذي الحجې میاشتې په دویمه (۱۷۳۸ م کال د مارچ، ۲۳ مه) د جمعې په ورځ خپل یوه برخه ځواک( بختیاري دا) پر ښار حملې ته ولېږه او د حملې وخت د جمعې لمانځه د ادا کولو مهال وټاکل شو.

په دې توګه په یوه خوځند برید کې د ښار پر برجونو د خمپارو او توپ په ډزو سره تر لږې، خو خونړۍ جګړې وروسته د ښار دروازې د نادر د ځواکونو پرمخ پرانیستل شوې، کله چې شاه حسین له موضوع څخه خبر شو چې کار له کاره تېر شوی، نو وروستۍ هڅې یې هم بې ګټې پاتې شوې له دې کبله نادر ته تسلیم شو. (۳۶)

د کندهار تر نیول کېدو وروسته خلک چې لس میاشتې یې د نادر پرضد په ټینګه مقاومت کړی و، لوټ کړای شول او د نېزو په زور نادر اباد ته وکوچول شول. وروسته نادر فرمان ورکړ، چې ښار دې په بشپړ ډول وران کړل شي. (۳۷)

د جهانکشای نادري نومي کتاب د لیکوال په وینا: "نادر: ښار او د هغه استحکامات داسې وران کړل، چې تېره پر تېره پاتې نه شوه". (۳۸)

خو (لکهارت) په دې اند دی: "څرنګه چې ښار ډېر ټینګ دېوال درلود او د اوولسمې پېړۍ په نیمایي کې اورنګزېب وروسته یې ورور داراشکوه د خپلې خزانې ډېره پانګه ددې دېوال په ټینګولو کې لګولې وه، خو د نادر دا فرمان ( یانې ټول ښار باید له خاورو سره یو شوی وای) عملي نه شو او د ښار یوه برخه روغه پاتې شوه".(۳۹)

د "دولت نادرشاه افشار" لیکوالان کاږي: د نادر له خوا د کندهار تر نیول کېدو وروسته هلته "دومره شته او پیسې ترلاسه شوې، چې په ډېرو ستونزو یې وکړای شول د یوې میاشتې په بهیر کې یې تر ښار دباندې یوسي".(۴۰)

نادر د کندهار تر نیولو وروسته، شاه حسین هوتک او د غلزي قبیلې ټول مشران خراسان ته تبعید کړل او د هغوی پرځای یې په نیشاپور او د خراسان په نورو برخو کې مېشت ټول ابدالیان کندهار ته ولېږدول اود هوتکو د شاهي کورنۍ د چارو واکې یې هغوی ته وسپارلې.

عبدالغني خان الکوزی یې، چې د بغداد او ترکیې په فتحه او د هرات او کندهار په نیولو کې یې د ابدالي ځواکونو په مشرۍ د نادر پر ګټه توره وهلې وه، د کندهار حکومت ته وټاکه او نور ابدالي، الکوزي او علیزي مشران د بُست، ګرشک او زمینداور په حکومت او مشرۍ وټاکل شول.(۴۱)

د ګنداسنګ او محمدکاظم په وینا ذوالفقار خان چې له خپل ورور احمدخان (وروسته احمدشاه) سره د کندهار تر فتحې د شاه حسین هوتک په بند کې بندي و، د نادر په امر په ظاهره د مشر په توګه مازندران ته ولېږل شو او هلته د نادر په اشاره له شاه حسین سره مل زهر ورکړل شول.

خو د ذوالفقار خان ورور احمدخان د نادر په پوځ کې ګډ شو او ډېر ژر د د نادر د ځواک د ابدالي برخې د څهارهزار د نظامي افسر په توګه ومنل شو. سیدالخان ناصر د نادر په امر په سترګو ړوند کړای شو، حاجي اسمعیل غلزی بېرته هرات حکومت ته راستون شو او څرنګه چې د

ذوالفقار او احمدخان خور یې مېرمن وه، نو د هرات لویدیز لوري ته د نادر په اجازه له ایرانه راستنو شویو ابدالیانو ته وسپارل شو.[۴۲]

## د کابل نیول:

کابل ته هم غمجنوونکی برخلیک وروپېښ شو. نادر د کندهار تر نیولو دوه میاشتې وروسته د (۱۸۳۸)م کال د مې میاشتې په (۲۱) مه نېټه له نادرآباد څخه د کابل پر لوري روان شو. د غزني قره باغ ته په ننوتو سره، د غزني قومي مشرانو، روحانیونو او قاضیانو هرکلي ته ور ودانګل، خو د غزني حاکم کابل ته وتښتېد.[۴۳]

میرزا مهدي خان استرآبادي وایي:

نادر له غزني څخه کابل ته تر روانېدو مخکې د خپل پوځ یوه برخه د د ایکندي، جغتو، زنګي او د غزني د نورو هزاره مېشتو سیمو په لوټولو او نیولو ماموره کړه.

خو د هزاره خلکو په مطیع کولو کې د نادر د ځواکونو هڅې بې ګټې پاتې شوې، یوازې یې وکړای شول د هغوی یوشمېر ماشومان او مېرمنې په اسارت ونیسي او په نادر پسې یې کابل ته راولي.[۴۴]

محمدکاظم په دې اند دی چې: نادر خپل زوی نصرالله خان د غزني له قره باغ څخه د بامیان او ضحاک کلا پر نیولو مامور کړ، خو هغه د مېشتو خلکو له سخت مقاومت سره مخامخ شو، شازاده نصرالله په بامیان کې د هزاره وو د ایماق قبیلو له سختو خونړیو جګړو وروسته وکړای شول ضحاک کلا ونیسي او یو شمېر هزاره مشران او قومي ریسان په چاریکار کې خپل پلار ته راولي.[۴۵]

نادر د غزني تر نیولو وروسته د کابل پر خوا پر مخ لاړ او څه کم خپل دوه زره تنه پوځیان یې مامور کړل چې تر ده وړاندې کابل ته ودانګي.

نادر د کابل کوتوال یانې شرزه خان ته یو پیغام ولېږه، چې په کې ویل شوي وو: د محمدشاه له هېواد سره کوم کار نه لري، خو د هغه ځای د مېشتو افغانانو د له منځه وړلو نیت لري.

د کابل او پېښور صوبه دار ناصرخان له ډيلي څخه مرسته وغوښته، چې د نادر د مقابلې لپاره راودانګي، خو ور ځواب يې وانه ورېد، نو هغه هم په خيبر دره کې له خپل شل زره کسيز ځواک سره د نادر راتلو ته په تمه کښېناست.

شرزه خان او خلکو ښه ورځې ښه په ټينګه د ښار دفاع وکړه، خو کله چې د نادر پوځونو د ښار دېوالونه ونړول اوپه زوره ښار ته ننوتل، نو په ښار کې له نېستمنو خلکو پرته نور څوک نه وو پاتې، ځکه مېشتو کسانو خپلې شتمنۍ رااخيستې وې او په کلا کې پټ شوي وو: "نېستمن او کموسه خلک چې پاتې وو، هماغه شېبه د نادر د پوځونو له خوا ووژل شول. د نادر پوځونو وروسته د ښار ټول کورونه چې له مرمرو ډبرو جوړ شوي وو وران کړل... د ودانيو دروازې، چتونه او نور لرګين څيزونه يې وسوځول، يوازې يې برجونه ځکه پرېښودل چې خپل توپونه په کې ودروي او پر کلا ډزې وکړي".[۴۷]

ديملسون د نادر په لاس د کابل نيولو نېټه د (۱۷۳۸) م کال د جون مياشت اتمه نېټه ليکي.[۴۸]

نادر له کابله د محمدشاه ګورګاني لپاره ډيلي ته د دوستۍ ټينګېدو لپاره يو پيغام ولېږه او خپله يې د خوراکي او نورو اړتيا وړ موادو د برابرولو په موخه پر هندوستان يرغل وکړ، ځکه چې کابل نه شول کولای د نادر د پوځ ټولې اړتياوې ورپوره کړي، نو نادر د خپل پوځ يوه برخه د کابل ودانو سيمو لکه تګاو او نجراو سيمو ته ولېږله، چې پوځ او نورو حيواناتو ته په لنډه موده کې خوراکي توکي او واښه برابر کړي او خپله له خپلو ځينو پوځيانو سره د ګندمک له لارې د جلال اباد پر لوري روان شو. کله چې نادر واورېدل، په جلال اباد کې يې د مړينې خبرې کېږي، نو د هغه ځای له خلکو سره يې له توند چلند څخه کار واخيست او د يوه کس پرځای يې د سلو کسانو سرونه پرې کړل او له هغه ځايه بيا د خيبر درې خوا ته روان شو.[۴۹]

نادر له جلال اباد څخه د وتو پر وخت د خپل پوځ څه له پاسه دوولس زره کسان وړاندې ولېږل او امر يې وکړ چې لــه عمــده ځواک څخــه دوه منزله فاصله واخلي.

پر هماغه مهال د کابل مشر ناصرخان، د پېښور او خيبر تر شلو زرو زيات افغانان په خيبر ګردنه کې ځاى پرځاى کړي وو، چې د ايراني پوځيـانو د پرمختګ مخنيوى وکړي.

څــرنګه چې د نادر (قراولانــو) د خيبر درې پــه ختيزه غاړه کــې د دښمن د شتوالي ګزارش ورکړ، نو نادر تصميم ونيو چې خپل دوديز جګړه ييز چل وکاروي، په دې توګه له يوې ستونزمنې لارې مخکې راغلل او لــه بله پلوه يــې ناڅاپه پر دښمن بريد وکړ.

نادر د يو ښه لارښود په موندلو سره د خپل ځواک لويه برخه په ديکاب نومې سيمه کې پرېښوده او خپله يې د دېرشو زرو سپرو پــه مشرى د (ســه چوبه) له لارې چې ډېر اوچت غر دى، پر دښمن راودانګل، بله ورځ يـــې دېرش فرسخه لار ووهله او د ناصرخان پر ځواکونو يـې بريد وكــړ او دوى يــې په لنډه موده کې د پېښور او جمرود پرلوري تر شا کــړل، ناصرخــان او د مقابل لوري ځينې نور مشران يــې ونيول او تــر دريــو ورځو وروسـته د پاتې ځواكونو په راتلو سره د پېښور پر لوري روان شول.[51]

نادر د پېښور تر نيولو وروسته پر لاهور بريد وکړ او لاهور يـې له جګړې پرته ونيو. تر هغه وروسته د هند د ګورګاني دولت پلازمېنې (پايتخت) شــاه جهان آباد ته متوجه شو، چې د نار ځواكونو تر لړو جـګړو وروسـته د هنـد وروستى ګورګانــى واکمــن محمدشــاه تسليمېدو تــه اړويســت او نــادر د ۱۱۵۱هـ كال د ذي الحجې په اتمــه د جمعې پــه ورځ شـاه جـهان آبـاد (ډيلي) ته ننووت.[51][۞]

---

[۞] په آر (اصل) متن کې هم (۵۱) نومره ماخذ تکرار راغلى دى. (ژباړن)

## د کندوز او بلخ نیول:

هغه مهال چې نادر د کندهار پر محاصره بوخت و، نـو شـل زره کسیز پوځ پـې د زوی رضا قلي میرزا په مشرۍ لـه خراسـانه د بلـخ د نیولـو پـه موخه روان شو او په ماروچاق سیمه کـې د هـرات مرسـتندوی پـوځ هـم ورسره ملګری شو او وروسته د اندخوی پر لوري وخوځېدل. کلـه چـې دا پوځ د اندخوی یـو منزلـۍ قراتپې تـه ورسـېد، نـو رضـا قلـي مـیرزا د اندخوی حاکم علیمردانخان ته یو لیک ولېږه، دا اشاره یـې هم ورته کړې وه چې تسلیم شي او ښار د عزیزقلیخان دادخواه ورور نیاز قلي تـه ( چـې مخکې یـې له علیمردانخان ازبک سره د هغه ځای پـر حکومـت اختـلاف پیـدا شـوی و او اصفـهان تـه رضـا قلـي مـیرزا تـــه تللـــی و). وســـپاري، علیمردانخان له ځان سره سوچ وکړ که له مقاومت پرته ورتسـلیم شـي، نـو حتماً به د کینه ګرو: نیاز قلي دادخواه او عزیز قلي له خوا ووژل شـي، نـو تصمیم یـې ونیو چې د ځان او د ښاري خلکو د دفاع لپاره اوچت شي. نو رضا قلي میرزا ته یـې ځواب ورکړ چې د ښار پرېښودو ته چمتو نـه دی. د رضا قلي میرزا پوځونو ډېر ژر ښار محـاصره کـړ، هلتـه علیمردانخـان هـم دېوالي (حصاري) جـګړې پیـل کـړې، چـې دا جـګړې څلـوېښت ورځـې وغزېدې، اخر د سیمې ځینو فیوډالانو له علیمردانخان سره مخـالفت پیـل کړ او له دښمن سره یـې له مقاومت څخه لاسونه واخیستل، رضا قلي مـیرزا د ښاریانو ترمنځ د اختلافونو په پوهېدو سره محاصره نوره هم تونده کـړه، علیمردان چې ولیدل د ښار خلک زړه نازړه شوي، نو له جګړې څخه یـې لاس واخیست او ښار یـې رضا قلي مـیرزا تـه وسپاره، رضـا قلـي مـیرزا د اندخوی حکومت نیازقلي دادخواه ازبک ته وسپاره، علیمردان خـان او د اندخوی ښار دوه نور مشران یـې چې له هغه سره یو لاس شوي وو، هرات ته واستول او هملته ووژل شول.[۵۲] د نادر پوځونو وروسته شبرغان او آقچه هم ونیول او د بلخ پر لوري وخوځېدل.

د بلخ حاکم ابوالحسن د چنګېزخان د کورنۍ له پاتوشونو، یو کمزوری او سست ارادې سړی و. د هغه ناظر قبچان د نادر له پوځ سره جګړې ته چمتو شو، له بلخ ښار څخه دوولس زره تنه د جګړې په موخه ووتل، چې بلخ ته نژدې یوه کوچنۍ خو خونړۍ جګړه ونښته، چې په پای کې سیدخان قبچان له خپلو ځو تنو پوځیانو سره د (شادیانو) خوا ته شاتګ وکړ، ځینې پوځیان شاه مردان ته وتښتېدل او ځینې هم ښار ته راستانه شول او د نادر د پوځیانو پرمخ یې دروازې وتړلې، رضاقلي میرزا تر ښار دباندې چمن ته نژدې اردوځای جوړ کړ. د نادر پوځونه به ډلې ډلې د ښار شا وخوا راتلل خلک به یې لوټل او هغه شتمنۍ او مالونه به یې خپلو اردوځایونو ته وړل. اخر د ښار ځینې سپین ږیري او روحانیون رضا قلي میرزا ته ورغلل او د تسلیمېدو چمتووالی یې وښود.

رضاقلي میرزا هم ددې وضعې هرکلی وکړ او خپل ځینې مشران یې د لوټونو او غلاوو د مخنیوي لپاره ښار ته ولېږدول او ځای پر ځای کړل. ابوالحسن چې د ښار په بالاحصار کې پټ و، کله چې خبر شو د نادر ځواکونو د ښار ځینې برخې نیولي، قرآن په لاس او توره په غاړه له ارګ څخه ووت او رضاقلي میرزا ته تسلیم شو. رضاقلي همدغه سړی خپل پلار ته چې د کندهار پر محاصره بوخت و، ولېږه. نادر هغه ته اجازه ورکړه چې د خدای ﷻ د کور زیارت ته لاړ شي او هلته ومري.

رضاقلي میرزا د بلخ تر فتحې وروسته، خپل ځینې پوځیان د شاه قلي مروي په مشرۍ د سیدخان قبچان د څارنې او نیونې لپاره سانچارک ته ولېږل.

له بل لوري سیدخان ازبک خپل ځینې نور کسان د سنچارک شا و خوا ته واستول، هغوی یې د نادر د پوځونو له لوټونو او د تباهۍ له ګواښ څخه خبر کړل او هیله یې ورڅخه وکړه چې د نادر د پوځونو په له منځه وړلو کې ورسره مرسته وکړي. د سنچارک سیمې ازبکان د سیدخان ازبک په پلوي اوچت شول، په یوه جګړه کې چې په یوه دره کې د شاه قلي

بیګ له ځواکونو سره وشوه، د دښمن پوځ ته یې وژونکی ګوزار ورکړ، چې ان په پیل کې د دښمن د اختلال سبب شو.

محمد کاظم ددې جګړې یو انځور داسې کاږي: "هغه دوې ډلې د دوو رودونو او یا دوو غرونو په شان یو پر بل راپرېوتلې، داسې جګړه ونښته چې وینې څښونکی بهرام ورته ګوته پر غاښ پاتې شو:

*ژباړه:*

*دوو لښکرو زړونه مرګ ته کښېښودل*
*د رلیو په شان غشي اورېدل*
*یو پر بل باندې برېدونه پیل شول*
*غرونو، دښتو په سرو وینو ولامبل*
*هوا ډکه شیوه له تورو او له غشیو*
*واړه تربې شکې شولې پرې خړوبې*
*سره ویې وژل هره خوا نښه ډېر*
*چې له مړو تولې لارې ډکې شوې.*(۵۳)

د یوه ازبک قوماندان په وژل کېدوسره د سیدخان خلک وارخطا شول، چې په پایله کې له ماتې سره مخامخ شول. ځینې تېپيان، ځینې مړه شول او ځینې وتښتېدل، د نادر پوځونو د هغه ځای مېشت ټول مالدار او څاروي لرونکي ازبکان له ځان سره په زوره بلخ ته بوتلل او دوی بېرته خپلو لومړنیو ځایونو ته راغلل، هغه بل پوځ چې د رضاقلي میرزا له خوا د سیدخان قبچان په څارنې پسې روان شوی و، د سیدخان د ډلې د ځپلو لپاره د سانچارک پر لوري روان شو. سیدخان ازبک څه موده د هغې سیمې په غرونو کې پټ و، کله چې خبر شو د نادر خلک یې له څارنې لاس نه اخلي، نو اړ شو چې کندوز ته د یو سفخان ازبک ورور هزاره خان ته لاړ شي او پناه ځنې واخلي.

د نادر پوځونه د سانچارک سیمې د خلکو تر تابع کولو او له هغو څخه د مالیاتو او ډېرو نورو شتو تر اخیستو وروسته بېرته بلخ ته ستانه شول.

رضاقلي میرزا د بلخ حکومت یوځه نور هم ښه کړ او خپله له خپل پوځ سره د قارشي او آمو سواحلو خوا ته روان شو.[۵۴]

وروسته تر دې چې رضاقلي میرزا د آمو په سواحلو کې بېلابېل ښارونه او ښارګوټي ونیول، نو خبر ورکړل شو چې د کندوز د حاکم یو سفخان ازبک ورور هزاره بېګ د سیدخان قبچاق په مرسته د نادر له پوځونو سره جګړې ته چمتو کېږي، رضاقلي د طهماسب خان جلایر په لارښوونه خپل پوځ د کندوز پر لوري روان کړ.

د نادر د پوځونو وژنو او لوټونو د سیدخان او د کندوز د حاکم یوسفخان په زړونو کې داسې وېره رامنځته کړې وه، چې کندوز ته د نادر د پوځونو تر راتګ دمخه سیدخان بدخشان ته د هغه ځای والي نباتخان ته وتښتېد، یو سفخان چې یو وېرندوکی سړی و، د نادر له پوځ سره تر مخامخېدو مخکې سکته وکړه.

کله چې رضاقلي میرزا د کندوز څو فرسخۍ ته ورسېد. مشران، فیوډالان او روحانیون له ډالیو سره ورغلل او له هغه سره یې خپل ملاتړ څرګند کړ، رضاقلي میرزا له مقاومت پرته کندوز ته ننووت او د یو سفخان کلا یې د خپل استوګنځي په توګه وټاکله.

محمدکاظم د رښتینو روایت کوونکو له خولې وایي چې یوسفخان ازبک یو عیاش، بدای او ښځې خوښوونکی سړی و، چې له هغې سیمې څخه یې شپږ سوه ښځې او نجونې په زور خپلې کلا ته راوستلې وې او ساتلې یې، هغه ښځو ته ابلول، سندرې غږول، نڅاوې، موسیقي، شعبده بازۍ او رسۍ بازۍ ورزده کړې وې، سربېره پر دې یې ځینو خلکو ته زرګري، میناتوري، انځورګري، نقاشي، بقالي، بزازي، سیمساري او نورې حرفې (کسبونه) چې د ټولو شمېر (۳۳) کېده ورښودلې وې، چې ټولو به دده په ګټه کار کاوه. په کلا کې یې دننه نورې بېلابېلې او پراخې ودانۍ

جوړې کړې وې. دا سې بازار يې هم ودان کړی و چې د بېلابېلو دکانونو کتارونه په کې وو او ځينو ښځو به په کې سودا او نورې سوداګريزې معاملې کولې... دی به په خپله د تنباکو پلورونکي په توګه بازار ته راته او په کليواله‌لهجه به يې ويل: "ای ټر سر مو وګرځم، تر نوم مو ځار شم، ای زما ترورې! زما تنباکو هم کله - کله څکوئ، پيسې هم راکړئ او ژر - ژر اهونه وکاږئ".

هغه به له ښځو سره همداسې خبرې کولې او خپل ډېر وخت به يې د ښکلو ځيزونو په رانيولو تېراوه، له ښځو سره به يې ټوکې، شوخي او شخړې کولې او کله به يې د سندرغاړو او سازنده وو پر خبرو ځان بوختاوه او په خوښۍ سره يې ژوند کاوه.[۵۵]

د يوسفخان تر مړينې وروسته رضاقلي ميرزا د کندوز حکومت هزاره بېګ اژبک ته وسپاره، هغه مېرمنې يې چې يوسفخان خپلې کلا ته راوستلې وې ځينې د خپل پوځ مشرانو او مخکښانو ته ورووبښلې او ځينې يې رخصت کړې، چې خپلو اصلي استوګنځيو ته لاړې شي. وروسته رضاقلي ميرزا له خپلو پوځونو سره بدخشان ته روان شو، خو پر همدې مهال ورته د نادر فرمان ورسېد، چې بېرته بلخ ته ستون شي او د هغه ولايت مشرتابه ټينګ کړي او د هغه دربار ته ورشي.

رضاقلي ميرزا هم د پلار په امر بلخ ته لاړ او بلخ حکومت يې د عزيزقلي داد خواه ورور نياز خان ته وسپاره او خپله له طهماسب خان جلاير سره کابل ته روان شو او وروسته جلال اباد ته لاړ او له خپل پلار سره يې وکتل او د نادر د وليعهد په توګه وټاکل شو، تر هغه وروسته ايران ته روان شو.[۵۶]

تر (۱۷۴۰) م کال وروسته د نادر د استبدادي دولت پرضد د افغانانو پرله پسې پاڅونونه ترسره کېږي، چې دا دې د نېټو او اوډون له مخې به يې ولولو:

# د دويم څپرکي سرچينې:


۱. لکهارت: انقراض سلسلۀ صفويه، د ډاکټر اسمعيل دولتشاهي ژباړه، تهران، ۱۳۴۴ ل کال، ۳٦۹ مخ. نادرشاه: د مشفق همداني ژباړه، ۱۳۳۰ ل کال چاپ، ۴۰ – ۴۴ مخونه.

۲. جهانکشاى نادري: ۷۱- ۷۲ مخونه. زندګاني نادرشاه: ۴٦ – ۴۷ مخونه.

۳. زندګاني نادرشاه: ۴۷ مخ. انقراض سلسلۀ صفويه: ۳۷۴مخ. نادرشاه: ۴۳ مخ.

۴. سفرنامۀ سايکس: د حسين سعادت نوري ژباړه، دويم ټوک، ۳۲ څپرکی، ۱۳۳٦ ل کال، چاپ، تهران.

۵. لکهارت: انقراض سلسلۀ صفويه، د دولتشاهي ژباړه، ۳۷مخ. زندګاني نادرشاه: ۴۸مخ.

٦. – ۷. انقراض سلسلۀ صفويه، ۳۷۴ – ۳۷٦ مخونه. نادرشاه: ۴۸- ۵۸ مخونه.

۸. هماغه اثر: هماغه مخ.

۹. عالم آراى نادري: لومړى ټوک، ۲۳۴ مخ.

۱۰. هماغه اثر: تر ۲۳۵ مخ وروسته.

۱۱. غبار: افغانستان در مسير تاريخ، ۳۴۴ مخ.

۱۲. – ۱۳. محمدکاظم: لومړى ټوک، ۲۴۲- ۲۴۷ مخونه.

۱۴. محمد کاظم: لومړى ټوک، ۲٦۰ مخ.

۱۵. // // ۲۷۰ مخ.

۱٦. // // ۲۷۲ – ۲۷٦ مخونه.

۱۷. غبار: افغانستان در مسيرتاريخ، ۲۴۴ مخ.

۱۸. – ۱۹. محمدکاظم: لومړى ټوک، ۲۷۷ مخ.

۲۰. محمدکاظم: لومړى ټوک، ۲۷۸- ۲۷۹ مخونه.

۲۱. محمدکاظم: لومړی ټوک، ۲۸۰ مخ. جهانکشای نادري: ۱۵۴ مخ.
۲۲. میرزا مهدي خان استر آبادي: جهانکشای نادري، ۱۵۵ مخ.
۲۳. محمدکاظم: عالم ارای نادري، لومړی ټوک، ۲۸۲- ۲۸۴ مخونه.
۲۴. میرزا مهدي خان استرآبادي: جهانکشای نادري، ۱۵۵مخ.
۲۵. محمدکاظم: لومړی ټوک، ۲۹۳ مخ.
۲۶. محمدکاظم: لومړی ټوک، ۳۰۸ – ۳۱۰ مخونه.
۲۷. لکهارت: نادرشاه، ۱۵٦ مخ.
۲۸. ګنداسنګ: دراني احمدشاه، د ا. ج. علومو اکاډمي، ۱۳٦٦ل کال، ۱۸ مخ ( د تاریخ سلطاني، ۱۱۸ مخ. میرزا مهدي خان ، ۱۷۹ – ۱۸۲ مخونو په حواله).
۲۹. هماغه اثر: ۱۵۷ مخ. دولت نادرشاه افشار: ۱٦۷ مخ.
۲۹. – ۳۰. ګنداسنګ: دراني احمدشاه، د نصرالله سوبمن ژباړه، د ا. ج. علومو اکاډمي، ۱۳٦٦ل کال، ۱۹ مخ.
۳۱. د جهانکشای نادري د لیکوال په وینا(۲۸۷- ۲۸۸- ۲۹۷- ۳۰۲- ۳۰۴ مخونه) او د لکهارت په وینا:
د نادر ځواکونو چې د زمینداور د نیولو لپاره له ګرشک څخه ماموریت اخیستی و، هڅه کوله چې ډېر ژر د زمینداور کلا ونیسي او خلک اطاعت ته اړ کړي، خو د افغانانو له خوا له داسې مقاومت سره مخامخ شول چې د ۱۱۵۱هـ کال د ژمي تر پایه ونه توانېدل هغه سیمه په بشپړ ډول ونیسي، خو بُست او د هغه شا و خوا سیمې یې یوازې د څو میاشتو لپاره ونیولې او هغه مالونه یې کندهار ته ولېږدول، چې له خلکو څخه یې اخیستي وو.( لکهارت: ۱٦۱ مخ).
۳۲. لکهارت: نادرشاه، ۱۵۸- ۱۵۹ مخونه.
۳۳. دولت نادرشاهٔ افشار: ۱٦۷ مخ. میرزامهدي خان: جهانکشای نادري، ۲۹۷- ۳۰۹ مخونه. محمدکاظم: دویم ټوک، ۸٦ مخ.
➢ محمدکاظم د کندهار کلا په ستاینه کې وایي:

چو زد شاه جم قدر گردون وقار
سرا پرده بر دامن قندهار
یکي باره بر قُلهٔ کوه دید
ز مردم جهاني پر انبوه دید
یکي قلعه چون طاق نیلي حصار
بر وجش سراسر شده استوار
رواق فلک طاق دروازه اش
در افاق افتاده آوازه اش
لب خندق و خاکریزش به هم
نهایات ملک وجود و عدم
بدامان وی کآفت انگیخته
فلک مشت خاکستري ریخته
ز رفعت بدان قلعهٔ دلنواز
فلک زیر دست او مه سرفراز
سر کنگره ش بر فلک کرده راه
خراشیده زان روی خُرشید و ماه
درش بسته مانند قوس قزح
نمایان ز بالاش قوس و قدح
فلک سالها گرد عالم دوید
بنایی بدانگونه هرگز ندید
قلم گر کند وصف ان را رقم
قلم را کند بار دیگر قلم
نکو قلعهٔ کوه پر از سنگ بود
به کوهٔ دماوند در جنگ بود
... سر خاکریزش بر افلاک بود
برش آسمان تودهٔ خاک بود.

*(محمد کاظم: دویم ټوک، ۸۳ - ۸۴ مخونه)*

۳۴. دولت نادرشاه افشار: ۱٦۷- ۱٦۸ مخونه.

۳۵. لکهارت: هماغه اثر، ۱۵۹- ۱٦۲ مخونه.
۳٦. هماغه اثر: ۱٦۲ مخ.
۳۷. دولت نادرشاه افشار:۲٦۷ مخ.
۳۸. هماغه اثر: ۲۷۰ مخ. جهانکشای نادري: تر ۳۰۰ مخ وروسته.
۳۹. لکهارت: نادرشاه، ۱٦۴ مخ.
۴۰. دولت نادرشاه افشار: ۲۷۰ مخ. د محمدکاظم له دویم ټوک، ۱۷٦ مخ سره دې پرتله شي.
۴۱. لکهارت: نادرشاه، ۱۷۰ مخ.
۴۲. ګنداسنګ: درانی احمدشاه، د علومو اکاډمي چاپ، ۱۳٦٦ل کال، ۲۴ مخ (د تاریخ حسین شاهي ۹- ۱۰ مخونه. تاریخ سلطاني: ۱۲۱ مخ، صولت افغاني: ۳۴۱ مخ، لکهارت: نادرشاه، ۱۷۰ مخ، محمدکاظم: دویم ټوک، ۱۷۸ مخ په حواله).
۴۳. دولت نادرشاه افشار: ۲۷۰ مخ.
۴۴. میرزا مهدي خان: جهانکشای نادري، ۳۰۴ – ۳۱۰ مخونه. محمدکاظم: دویم ټوک، ۱۸۸ – ۱۸۹ مخونه.
۴۵. محمدکاظم: نامه عالم آرای نادري، دویم ټوک، ۲۰۲- ۲۰۸ مخونه.
۴٦. – ۴۷. دولت نادرشاه افشار: ۲۷۰ مخ.
۴۸. میلیسون: د افغانستان تاریخ، پښتو ژباړه، منشي احمدجان، پېښور چاپ، ۱۹۳۰ م کال، ۲۴۸ مخ.
۴۹. محمدشفیع تهراني: تاریخ نادرشاه، ۳۴- ۴۴ مخونه. لکهارت: ۱۷۱مخ.
۵۰. محمدکاظم: نامه عالم آرای نادري، مسکو چاپ، ۱۹٦٦ م کال، درېیم ټوک، ۲۲۰ مخ.
۵۱. بیان واقع در احوال نادرشاه: عبدالکریم ابن خواجه عاقبت کشمیري، د ډاکتر کې، بي نسیم په سمون، د پنجاب پوهنتون چاپ، لاهور، ۱۹۷۰م کال، ۳۵ مخ.
۵۲. محمدکاظم: دویم ټوک، ۲۱۲- ۲۱۳ مخونه.
۵۳. – ۵۴. هماغه اثر: ۲۲۱- ۲۲۴ مخونه.
۵۵. هماغه اثر: ۲٦۰ مخ.
۵٦. هماغه اثر: ۲٦۹ مخ.

# دریم څپرکی

## د نادر افشار پرضد د افغانانو پاڅونونه

### ۱:- د کابل رود په سرچینو[*] کې د پښتنو پاڅونونه:

په ۱۷۴۰م کال د نادر له خوا د هند تر فتحې او بخارا ته تر ورننوتلو وروسته هغه پښتانه چې د کابل رود په سرچینو کې یې ژوند کاوه، د پردیو د چپاو پرضد رااوچت شول او د پاڅون دا بیرغ د سپینغره په لمن کې د مېشت عاشق خان غلزي له خوا اوچت کړل شو، که څه هم د نادر کینه ګرو ځواکونو د طهماسب قلیخان جلایر په مشرۍ دا پاڅون وځاپه، خو د پاڅون مشرتابه مخکې له دې چې ځان د دښمن په لاس اسیر ووینې، په خنجر یې خپل ټټر وواهه او په مېړانه یې مړینه ومنله.

د عاشق خان له پاڅون سره جوخت یوسفزي قوم هم د محمدکاظم په وینا: "څه نا څه د خیبر، پېښور او اټک رود په سواحلو کې مېشتو نهه سوو افغان کورنیو هم پاڅون وکړ، د نادرافشار دربار د پېښو لیکونکي په وینا: [هغوی له پلرونو او نیکونو رانیولې تر اوسه پورې د چا پلوي او اطاعت نه و منلی، پر سینه یې یوازې د فرمانروایۍ او مشرتوب دعوه واکمنه وه]". د نادر ځواکونو د عاشقخان په مشرۍ د پاڅون کوونکو تر ځپلو او لوټلو وروسته پر ګندمګ برید وکړ. د هغه ځای واکمن مقربخان خپلې ګټې په خطر کې لیدې، د خپلو ګټو د ساتنې او د دښمن د خوښۍ په موخه یې دښمن ته خبر ورکړ، چې د یوسفزیو د پاڅون مشر محمدعلي خان دی او پاڅون کوونکي قومونه د اټک رود په ښي (راسته) ساحل (نوښار) کې استوګن دي.

---

[*] سرچینه د (مصب) توري ژباړه ده او مصب هغه ځای ته ویل کېږي چې د ورو ویالواوبه په لوی رود کې ورګډېږي، د ځروب (آبشار) په مانا هم راغلی دی. *(ژباړن)*

د نادر د ځواکونو شر د خیبر واکمن مقربخان موظف کړ چې خپل قومونه وپالي، خواړه او وابنه ورته برابر کړي او خپله دی د خپلو ځواکونو په ملتیا د محمدعلي خان د ځپلو لپاره دوی ته لار وښیي.

په لنډه موده کې پر اټک رود، پول وتړل شو او د نادر ځواکونه ورباندې واوښتل. محمدعلیخان د دښمن د شړلو لپاره د خپل پلرني ټاټوبي له جنګیالیو قومونو څخه څلوېښت زره تنه برابر کړل او په شېردره نومي ځای کې د ښکېلو غاړو ترمنځ درې خونړۍ جګړې ونښتې، خو دښمن کوم مهم بری ترلاسه نه کړ، محمدعلیخان چې خپله یې هم په جګړو کې ګډون درلود، پر اوږه ټپي شو او څه موده یې له جګړې لاس واخیست.[۲]

خو د نادر ځواکونه به هر وخت د پاڅون کوونکو قبیلو له بریدونو سره مخامخېدل او تلفات به ور رسېدل، دښمن شاتګ ته اړ شو او غوښتل یې کابل ته ستون شي، خو جنګیالیو لاره ورباندې بنده کړې وه، طهماسب قلیخان اړ شو، پوځ په یوه خرابه کلا کې پټ کړي او تر هغه مهاله تم شي. چې د ستنېدو خوندي لار پیدا کړي. نو خپل ځینې پوځیان یې د اټک د شا و خوا سیمو پر لوټونې او چپاو مامور کړل. هغوی هم په وحشتناکو وژنو او ترور سره د خلکو ډېر مالونه، غنیمتونه او اسیران خپل استوګنځي ته راوړل. په اسیرانو کې یو تن حاضر شو چې طهماسب ته د "میان برشبانه" لار چې په شنه دره کې د یوسفزیو د یوه ګڼ او لس زره کسیز کورني قوم له منځه تېرېده، وښیي، ددې اسیر سړي د خیانت له کبله دښمنو پوځونو د شپې په پټه درې ته ودانګل او د لمرختو پر وخت یې پر کوچیو یوسفزیو یرغل وکړ.

دا کوچیان چې جګړې ته یې تیاری نه درلود، وارخطا شول، ځینې یې وتښتېدل او ډېر نور یې ووژل شول. د محمدکاظم په وینا: طهماسب قلیخان د هغو بېګناوو خلکو عامه وژنه اعلان کړه او پرغلګرو تر مازیګره له

شلو زرو تنو زيات ماشومان، ښځې، سپينږيري او ځوانان له تېغه تېر کړل او دښمن ته ډېر مالونه او غنيمتونه هم په لاس ورغلل.[۳]

دا برى د دښمنانو د بېباکۍ سبب شو، ځينې پوځيان هماغه شپه د يوه بل اسير په لاړښوونه له غره څخه واوښتل او د غره تر شا يې پر غرمېشتو يوسفزيو چې پنځه - شپږ زره تنه کېدل يرغل وکړ او له دوى سره يې هم د مخکېنۍ ورځې چلند وکړ، د عالم اراى نادري د ليکوال محمدکاظم په وينا: د غرمېشتو خلکو مالونه اوشته تالا او "د هغه قوم ډېر بارونه، مالونه او خېمې لوټ شوې".[۴]

د يوسفزيو د پاڅون لمن پراخه وه او طهماسب قليخان نه شول کولاى په لنډه موده کې ټول پاڅون وځپي، نو له ناچارۍ څخه يې نادرشاه ته چې د داغستان د فتحې لپاره جګړې ته روان و، ليک ولېږه او په هغه کې يې اشاره کړې وه چې: "د اټک ټولو افغان قومونو مخالفت ته ملا تړلې او له دې شرارت څخه لاس نه اخلي".[۵]

نادر د پاڅون د ځپلو لپاره له اذربايجان څخه د اميراصلان قرخلو په مشرۍ يو مرستندوى پوځ ورولېږه، چې د فارس او بلوچستان له لارې کابل ته ننوځي او د پاتې نور پوځ په ملتيا پر پاڅون کوونکو بريد وکړي.

څکه په ۱۷۴۳ - ۱۱۵۵هـ کال د نادر له کينه ګرو ځواکونو سره د اذربايجان د اميراصلان قرخلو هوسا پوځونه هم د اټک د شا و خوا مېشتو قومونو د ځپلو لپاره روان شول، اميراصلان د هماغه کال په حرم مياشت کې د نادر د لښکر له نورو خانانو لکه: فتح عليخان کياني، مظفرعليخان، توکل خان بيات، نظر علي بېګ سره کوهاټ ته ننوتل، د کوهاټ د پاڅون کوونکو مشران محبتخان او سردار خان يوسفزي وو. دښمن ځواکونو محبتخان ته يو ليک وليکه، چې له جګړې پرته تسليم شي. محبتخان په ظاهره تسليمي او د سردارخان يوسفزي اطاعت څرګند کړ، دښمن پوځونه هم د سردارخان سيمې ته ننوتل، خو تر ننوتو وړاندې يې پر لاره پرتې سيمې وراني او لوټ کړې.

محمدکاظم لیکي: "پرنات" نومې سیمه بشپړه لوټ کړل شوه او دښمن (نادر پوځ) ته ۲۰۰ – ۳۰۰ زره پسونه، خره، اسونه او اوښان له نورو اسیرانو او ګڼ شمېر نورو غنیمتونو سره لاسته ورغلل.(٦)

کله چې طهماسب قلیخان د سردارخان کلا نیم فرسخۍ ته ورسېد، نو سردارخان یې د لیک له لارې له قید و شرط پرته اطاعت ته راوباله، سردارخان ځواب ورکړ: "د ایران پاچا نادر هم دې سیمې ته راغلی و، خو له کومې لاسته راوړنې پرته بېرته ستون شو، ته د هغه د درګاه یو ټیټ نوکر یې، هرڅه دې چې له لاسه کېږي کوه یې".(٧)

دا ځواب د طهماسب پر سر د سوک یو ګوزار و، خپل څه پوځ یې پر سردارخان کلا برید ته چمتو کړ، خو نه پوهېږه د خپل پوځ پر کومې ډلې مخکې د برید امر وکړي.

باید یادونه وشي چې محبتخان او عصمت الله خان له خپلو ځواکونو سره له بلې لارې سردارخان کلا ته ځانونه رسولي وو او جګړې ته چمتو شوي وو.

لومړنی سرلښکر چې پر سردارخان کلا باندې برید ته چمتو شوی و، کلا ته تر رسېدو مخکې پر ځمکه راوپرځول شو. سردارخان کلا په ببساري مقاومت له ځانه دفاع کوله، خو د غاړو ځواکونه د پرتلې نه وو، د دښمن توپونو او خمپارو د پاڅون کوونکو د پرځولو او د کلا د ورانولو لپاره په ډېره توندۍ فعالیت کاوه، په وروستیو ورځو کې د نادر ازمویل شویو او جګړوځپلو پوځونو په یو هراړخیز برید کې د درنو تلفاتو په منلو د کلا یو برج چې تر نورو برجونو ځواکمن و، ونیو. دښمن کلا ونیوله، خو د کلا اوسېدونکو په ډېره زړورتیا تر وروستي بریده له ځانه دفاع کوله، دښمنانو چې د کلا په نیولو کې یې بېساري تلفات لیدلي وو، د ښرمښانو په شان د کلا پر اوسېدونکو ور ودانګل، د ښځو، ماشومانو، سړو او آن سپیو او نورو ځارویو له وژنې څخه یې ډډه ونه کړه.

د عالم آرای نادري د ليکوال په وينا: "ميراصلان د هغې کلا ښځې، سرې له الوتونکو او نورو حيوانانو سره له تېرو تورو تېر کړل او له سهاره يې تر مازيګره داسې عامه وژنه وکړه، چې د سړو او حيواناتو په ګډون په کلا کې هېڅوک ژوندی پاتې نه شول، بلکه ورځ يې ټوله کلا ولټوله او د هغې ټول خيزونه يې چې له شماره وتلي وو د ځان کړل".[٨]

د پاڅون مشران هم د نورو پاڅون کوونکو په شان د مرګ ترحده وجنګېدل او د مېړانې مرګ يې د اسارت تر ژوند غوره وباله.

د نادر ځواکونو په کوهاټ کې د محبتخان، سردارخان او عصمت الله خان يوسفزي په مشرۍ د پاڅون تر ځپلو وروسته د هغه پاڅون کرارولو ته روان شو، چې د (شاه بزرګخان) په مشرۍ روان و. د محمدکاظم په وينا: د شاه بزرګخان په مشرۍ د يوسفزيو ددې لوی پاڅون د ګډونوالو شمېر څلوېښتو زرو تنو ته رسېده.

د دوارو غاړو ترمنځ سختې جګړې ونښتې، خو ددښمن جګړه ييز مهارت، توپخانې او نورې وسلې د قومي جنګياليو تر وسلو ښې وې، دېوالي (حصاري) جګړې پيل شوې، شاه بزرګخان کلا هم د کوهاټ د سردارخان کلا پر برخليک اخته شوه، خو مخکې له دې چې د کلا اوسېدونکي د دښمن له خوا ووژل شي، شاه بزرګ تسليم شو او دښمن ته يې (دوه لکه تومانه چې هر لک يې سل زره تومانه دی). جريمه ورکړه او له خپلو ملکي خلکو څخه يې سل زره تومانه راټول کړل او د نادر پوځ مشرانو ته يې ورکړل. په دې توګه يې نه يوازې ځان او نور ملکي کسان له وژنې وژغورل، بلکې د سيمې مشري او حکومت يې هم ترلاسه کړ.[٩]

وروسته له دې چې نادر پوځ د ډېره غازيخان او ډېره اسمعيلخان شنو درو ته روان شو، د هغو سيمو مشرانو هم تسليمي غوره وګڼله او له مړينې يې ځانونه خلاص کړل.

محمد کاظم، د ډېره اسمعيلخان او ډېره غازيخان په ستاينه کې وايي:

ددې درو ترمنځ ورشوګانې وې، چې د پاچايانو د ودانيو فضا او د ارم ګلبڼ ته ورته وې، په هغه شنه سيمه کې حيرانوونکي مرغان ډېر وو، خو په هره برخه کې يې تاووس مرغه ډېر ليدل کېده، ځو ورځې يې په هغو ورشوګانو کې تېرې کړې او له هغه ځايه بيا غازيخان او اسمعيلخان دېرو ته ننوتل او د هغو سيمو سرشته يې پياوړې کړه.[10]

**۲:- د بلخ، اندخوی او بدخشان پاځونونه:**

د ۱۱۵۳ هـ کال د جمادي الاول په اوومه نېټه نادر پوځونه د رضا قلي ميرزا تر مشرۍ لاندې د ماروچاق، چيکچکتو او اندخوی له لارې بلخ ته روان شول او د هغه ښار يو فرسخۍ (قوشخانې) ته ورسېدل او نيازخان قوش بېګي يې د بلخ د والي په توګه وټاکه او د خان په لقب يې سرلوړی کړ.[11]

يو کال وروسته د ۱۷۴۲م (۱۱۵۴ هـ. ق) کال په منې کې په بلخ او اندخوی کې د يوه نوموړکي (ګمنام) سړي په مشرۍ چې په ظاهره يې د ملنګانو جامې وې، يو بل پراخ پاځون پيل شو.

د محمدکاظم په وينا " دې سړي د امامت، معجزې او کراماتو دعوه کوله، په لنډه موده کې يې د بلخ او اندخوی په ترکانو او تاجکانو کې ډېر پلويان پيدا کړل او خپل يو پلوی عصمت الله ازبک يې د افشاري پوځيانو پرضد وهڅاوه، عصمت الله خان ازبک هم ډېر ژر پنځوس - شپېته زره قبچاق، د بلخ او سرپول خلک راټول کړل او د بلخ پر حاکم يې ورودانګل.

د بلخ حاکم (نيازخان) هڅه وکړه دا پاځون وځپي، خو پوځ يې مات شو او په دې توګه پاځون نوره پراختيا هم ومونده. له نادري پوځ څخه کرکه دومره ډېره وه چې پاځون کوونکو به د شاه کارکوونکي، قزلباش او يا هم هغه خراساني خلک چې د حاکم دفاع به يې کوله، نيول او وژل به يې. د بلخ حاکم د ارګ د کلا دروازه په ځان پسې وتړله او د نادر

مرستو ته په تمه کښېناست، د نادر ځواکونه له پامور توپخانې سره بلخ ښار ته راننووتل او د پاڅون کوونکو پر وژنې او ماتونې يې لاس پورې کړ.

عصمت الله خان ازبک په يوه جګړه کې ووژل شو او د هغه تر مړينې وروسته، درويشخان او د پاڅون کوونکو نور مشران ونيول شول او ووژل شول.[١٢]

خپلواکي غوښتونکې غورځنګ په وينو کې ډوب شو. محمدکاظم په تاريخ عالم آرای نادري کې وايي: د نادر يرغلګرو ځواکونو تر بلخ ښار دباندې د بلخ او سنچارک د قبچاقو قبيلو د مړو له سرونو داسې منار جوړ کړ، چې په رښتيا هم ډېر وېروونکی و. نادر د کوچيو قبچاقو قبيلو تر لوټونې وروسته د شانچارک طايفې د (٦٥٠٠) تنو مړو له سرونو يو کله منار جوړ کړ.

د محمدکاظم په وينا: "د سرونو د دې منار لوړوالی پنځلس ګزه او سور (عرض) يې اووه ګزه وو، چې په هره دوره کې يې ( څرنګه چې خپله محمدکاظم شمېرلي) د انسانانو يو سل او اتيا سرونه اوډل شوي وو..."[١٣]

د نادر په غوښتنه ټولوژنو په خلکو کې، د اطاعت پر ځای دښمنانه کرکه، غوسه او يووالی وروزه.

ډېره موده نه وه اوښتې چې په (١٧٤٥) م کال په بلخ کې يو بل پاڅون پيل شو، چې د بلخ د والي ورور مشتاق بېګ يې مشري کوله، د بدخشان حاکم ميرزانباتخان او ارال ميرزاقلخان ازبک هم ورسره يو شوي وو، د نادر پوځونو د سيمې د فيوډالانو په مرسته دا پاڅون وځاپه.[١٤]

بايد ووايو چې د پاڅونونو کمزورې ډلبندۍ، د يوه داسې مشر نشتوالي چې د خلکو پر ګټه په پرله پسې ډول مبارزه وکړي، په پاڅونونو کې کورنيو تضادونو او د فيوډالانو خيانتونو ټولو په ګډه مخکې له مخکې ددې پاڅونونو برخليک ټاکه.

په دې توګه، د بلخ پاڅون د ماتې لوى لامل د دښمن له خوا د مشاق بېګ په تمه كول، د بدخشان او خان ارال د پاڅون كوونكـو ترمنځ د وړ ارتبـاط نشـت، د كنـدوز د فيوډالانـو مخـالفتونو د بدخشـان او ارال لـه فيوډالانو سره، هزاره خان ازبک مخالفت، د شـاه ځواكونـو تـه د پـاڅون كوونكو د لوړ قشر تسليمېدنې او يو كېدنې د پاڅون ځپـل ګرنـدي كـړل، څـرنـګه چې مخكـې مـو يادونـه وكـړه، ددغـو پـاڅونونو لـوى علـت، د فيوډالانو د ګټه اوچتونې تشدد او له خلكو څخه په زوره د ماليات اخيستل وو، چې په زوره ورڅخه اخيستل كېدل. له پاڅونونو څخه د خلكـو موخـه د شاه د ظلمونو او د مالياتي ستم كموالى و، په داسې حال كـې چـې پـه كركري پاڅونونو كـې د ځينـو فيوډالانـو ګډون، د نادرشـاه لـه ځمكنـي سياست څخه د دوى د نارضايتي او د دوى د سياسـي نفـوذ او اقتصـادي وضعې د ښه كولو څرګندوى و. څـرنـګه چـې پـه پـاڅون كـې د دې دوو متضادو ډلو هدفونو توپير درلود، نو د پاڅون لوړ مشر چـې د دود پـه څېر به يـې د پاڅون مشري پرغاړه لرله، له پاڅون كوونكو سره خيانت كاوه، يا به يـې له شاه، يا د هغه له استازو سره جوړ جاړى كاوه.

نادر به د پاڅون كوونكو د لا ځپلو لپاره د پاڅون تـر ځپلـو وروسـته د پاڅون كوونكو پر سيمو ډېر ماليات وضعه كول.

لكه په ١٧٤٦م (١١٥٩هـ. ق) كال چې يـې د بلخ او اندخوى پر خلكو ملاماتوونكي ماليات وټاكل. د محمدكاظم (د درېيم ټوک ٣٦٨ مخ) په وينا:

"څـرنـګه چې د واكمن سوچ او خيال لـه ايرانيـانو واوښت او لوټونـې او وژنـې يـې پيل كړې، نو د (بلخ او جوزجان) پر اويماق قـوم يـې دوه زره وټاكل".

"د بلخ او اندخوى اوسېدونكو خپل ټول مالونه خرڅ كړل، يو سـل او اويا زره (د شپږو سوو او پنځوسو زرو تبريزي تومانو اندول) يـې دربـار تـه وسپارل، څـرنـګه چې نور يـې يو دينار هم نه درلود، چې د نادر دربار تـه

يې ولېږي، نو اړ شول چې ليريو غرونو ته وتښتي او د نادر د پوځونو له شره خپل ماشومان خوندي کړي"(۱۵)

په ۱۱۶۰هـ - ۱۷۴۷م کال بيا هم د بلخ، جوزجان او کندوز خلکو پاڅون وکړ او د شاه پرضد اوچت شول، ددې پاڅون مشران موسى خواجه ازبک، د کندوز پخوانی حاکم هزاره خان ازبک او استانقل قبچاق وو. هغوی بلخ ونيو او د نادر پوځ يې دړې وړې کړ.

بهبودخان د نادر د درباري پېښوليکونکي محمدکاظم په ملګرتيا له ماورالنهرڅخه له يو پوځ سره د پاڅون د ځپلو لپاره مامور شو. خو له ماتې پرته يې بل څه ونه موندل. د بلخ پنځه لس زرو ترکانو او تاجکانو په ټينګه دفاع وکړه او دښمن يې ښار ته پرې نه ښود. بهبودخان له ناچارۍ ميمنې او بادغيس ته مخه کړه. د موسى خواجه ازبک پنځه لس زره کسيز پوځ، دښمن تر سر پول پورې وڅاره او تر هغه وروسته قبچاقو او د ترکمن ايرساري قومونو د دښمن څارنه پر غاړه واخيسته او بهبودخان يې د درنو تلفاتو په ورکولو سره د اندخوی له پولو ها خوا وشاړه.(۱۶)

## ۳:- د هرات، بادغيس او غور پاڅونونه:

د عالم آرای نادري ليکوال کاږي: " د خزانې د مامورينو له خوا د خلکو سپکاوی او له هغوی سره توند چلند ددې سيمې د بېلابېلو قومونو د پاڅون لامل شو. لومړی شاديخان جمشېدي له خپلو شپږو زرو کسانو سره د بلخ او اندخوی پر واکمن ورودانګل او وروسته په هماغه کال کې ۱۱۵۹هـ درويش عليخان هزاره د بادغيس، هرات، غور، اندخوی، چار او اويماقو قومونو له دېرشو زرو تنو سره پر پاڅون لاس پورې کړ او د بلخ والي ګدايخان او مهديخان ديوان بېګي ته يې وليکل: "پر دې مهال پاچا د خلکو په مالي ځورونې عادت شوی، ډېر ايرانيان ورڅخه خوابدي شوي، هغه دواړه بايد له موږ سره هملاسي او يو شي". والي او مهديخان د هغه د کسانو پزې او غوږونه پرې کړل او ور ويې لېږل. درويش عليخان د ګدايخان دې سپکاوي ته په پام سره، له دېرشو زرو اويماق کسانو سره بلخ

ته ننووت او لس ورځې يې د ښار ټول چاپېر دېوالونــه پـه محـاصره کـې وساتل او د ټولو ډلو مالونه، اسباب او نور توکـي يــې تـالا او خلـک يــې ووژل". [۱۷]

درويش عليخان به چې پـه دې بريـد کـې هـرځاى د شـاه يـا نـادر د پلويانو کوم سړی يا کارکوونکی وليد، نو واژه يا به يې اسـيراوه او مالونـه به يې ورڅخه اخيستل. دا پـاځون دومـره اوږد شـو چې د بلـخ والي د پاځون کوونکو د ځپلو له کبله ځان کمزوری وليد او د نـادر دربـار تـه پـه شکايت کولو اړ شو. نادرشاه هم محمدرضاخان قرخلو ته چې د سيستان د پاځون کوونکو تر ځپلو وروسته نوی هرات ته راغلی و، د جمشېدي، چـار او ايماقو قومونو د پاځون د ځپلو دنده ورکړه، محمدرضاخان چـې ځان يې د پاځون کوونکو په وړاندې کمزوری او د ناکامۍ پـه صـورت کـې د نادر له سپکاوي سره مخامخ ليده، نو له ناچاريه د هرات د چار او ايمـاقو قومونو له پاځون سره يو شو. [۱۸]

نادر د خپل حکومت په وروستيو کلونو کې د خپلې واکمنۍ د بېلابېلـو سيمو د مېشتو خلکو د پرله پسې پاځونونو له کبله خپـل اعصـاب لـه لاسـه ورکړي وو، نو د خپل دولت ټينګښت ته يې يوه لار ليده، چـې هغـه ډلـه ييزې وژنې، د يادګاري کله منارونو جـوړول او د هغـه د فيـوډالي دولـت ظلمونه وو.

ميرزا مهدي او محمدکاظم يادونه کوي چې نادرشاه په ۱۷۴۷م کـال، کله چې له اصفهانه خراسان ته راسـتنېده، نـو پـه خپـل هـر ښار، کلـي او کرونده کې به يـې د مړو انسانانو له سرونو يادګاري منارونه جوړول، چـې د سيمو د مېشتو خلکو په زړونو کې وېره رامنځته کړي. [۱۹]

د ۱۷۴۶م کال په اوږدو او د ۱۷۴۷ دا په لومړۍ نيمايي کې په منځنـۍ اسيا کې د نادر واکمني د خلکو له سخت جوش او خروښ څخـه ډکـه وه او په قزاقو، ازبکو او قزاقلپاقو خلکو کې د ازادۍ لپاره پـاځون جـوړ شـو، چې دوی هم په ډېره بېرحمۍ سره وځپـل شـول. هغـو وژنـو، لوټونـو او

ورانيو چې د پاڅون له ځپلو سره به ملې وې، د پاڅون کوونکو سيمو پر اقتصادي وضعې ډېرې بدې اغېزې ښندلې. پاڅون ځپونکو به کرنې او نورو توليدي واحدونو ته سخت زيانونه اړول چې څو نور کلونه به هم د رغېدو نه وو، په دې توګه به توليدي او کرنيز واحدونه د شاه او سيمه ييزو فيوډالانو د سختو مالياتي فشارونو له کبله ډېر کمزوري کېدل او خلک دېته اړ کېدل چې د مالياتو ورکولو لپاره خپل کورونه وپلوري. ځکه، مالياتو اخيستونکو به د نادر په لاښوونه پاتې ماليات (تر وروستي ديناره) په زور او شکنجو اخيستل. که چېرې به داسې نه کېدل، نو په هماغه اندول به ماليات د خزانې له کارکوونکو څخه اخيستل کېدل.[٢٠]

د اتلسمې پېړۍ په پنځمه لسيزه کې د فيوډالي ګټو اوچتونو ښېښمېره تشدد، د نادر دولت د سختې اقتصادي پاشلتيا کندې ته ورټېل واهه او د فيوډالې طبقې د سختو طبقاتي او کورنيو تضادونو لامل شو.

### ۴:- د سيستان پاڅون:

د نادر د فيوډالي دولت د ظلمونو پرضد تر ټولو لوی پاڅون د ۱۷۴٦ – ۱۷۴۷م (۱۱۵۹- ۱۱٦۰هـ) کلونو په بهير کې د سيستان پاڅون و، چې د ۱۷۴٦م کال د دوبي په لومړيو کې پيل شو.

ددې پاڅون لامل هم د درنو مالياتو اخيستل وو. د مللک محمود سيستاني زوی فتح عليخان کياني د پاڅون مشري پر غاړه لرله. فتح عليخان چې د کندهار، کابل، خيبر درې او هندوستان په فتحو کې يې د نادر پر ګټه ستر خدمتونه کړي وو، له هندوستانه په راستنېدو د سيستان پر مشرۍ وټاکل شو.

فتح عليخان د ۱۱۵۸هـ [د ۱۷۴۵/ ۱۷۴٦م کال په ژمي کې] د نادر له خوا يو ليک ترلاسه کړ چې نادر د هغه په ترڅ کې ورڅخه ډېر ماليات غوښتي وو.

فتح عليخان د مالياتو اخيستونکو په واسطه پر خلکو زور راوړ، چې دا شمېر پوره کړي. خو دا شمېر د هغه اندول پروړاندې چې شاه غوښتي

و، ډېر لږ و، په دې ترڅ کې سلطنتي مالیاتو اخیستونکو نادر ته ګزارش ورکړ چې فتح علیخان په لوی لاس ډېر مالیات نه راټولول.[٢١]

حال دا چې خپله مالیاتو اخیستونکو ډېره برخه مالیات چې په بېلابېلو ډولونو یې له خلکو راټول کړي وو، خپلو جیبونو ته اچولي وو. نادر په دې خبرې تر پوهېدو وروسته امر وکړ چې مالیات اخیستونکي دې اعدام کړل شي او تر هغه وروسته یې سیستان ته نوي کارکوونکي ولېږل او هغوی ته یې لارښوونه وکړه چې یوځل بیا د یو ملیونو تومانو په شا و خوا کې له خلکو مالیات راټول کړي. فتح علیخان ته یې هم ګواښ وکړ چې په مالیاتو ټولونه کې ډېره هڅه وکړي او له مالیاتو سره مل دربار ته راشي. فتح علیخان او د سیستان خلکو چې ولیدل د دومره مالیاتو ورکولو توان نه لري، نو پر پاڅون یې لاس پورې کړ.[٢٢]

په پیل کې ( له ټولو پوړونو) شلو زرو تنو په پاڅون کې ګډون وکړ[٢٣]. د سیستان پر خلکو سربېره ډېر بلوڅان هم له پاڅون کوونکو سره مل شول، په دې بهیر کې اورېدل کېدل چې د کندهار او کابل خلک هم د پاڅون خیال لري، اوضاع په پیل کې د پاڅون کوونکو له غوښتنو سره سمه مخکې تله او فتح علیخان د نادر یو کاروان چې له هندوستان څخه راته لوټ کړ او تر هغه وروسته یې پر (بم) یو بریمن برید وکړ او ویې نیوه. فتح علیخان ددې بري او پاڅون کوونکو د زیاتوالي له کبله چې ورسره یو کېدل، په دې سوچ کې شو، چې ځان د سیستان د خپلواک حاکم په توګه اعلان کړي.[٢٤]

نو خپل لیکونه یې فراه، فیروزکوه او نورو ګاونډیو سیمو ته ولېږل او هغوی یې له مالیاتو اخیستونکو څخه سرغړونې ته راوبلل.[٢٥]

هغه دېرش کسیز پوځ چې د نادر له خوا د پاڅون کوونکو د ځپلو لپاره لېږل شوی و، د پاڅون کوونکو له خوا دړې وړې شو، د پاڅون توندوالي نادر دېته اړ وېست چې سیستان ته نوي ځواکونه ولېږي. د ١٧٤٦م کال په مني (خزان) کې محمدرضاخان د نادر د پوځ په ملتیا

پاڅون کوونکو ته سخته ماتې ورکړه او فتح عليخان يې هم په اسارت ونيو.[۲۶]

د نادر د دربار پېښليکوال محمدکاظم د پاڅون کوونکو ماتې د فتح عليخان او د پاڅون کوونکو د يو بل ځواکمن او زړور مشر ميرسيف الدين ترمنځ د نظر اختلاف ګڼي، چې اخر په پاڅون کې د دواړو رقيبو مشرانو پر مړينې پايته ورسېد. هغه ليکي: تر هغه مهاله چې د جګړو برى د پاڅون کوونکو و، فتح عليخان له خپلې يوې ډلې سره د فراه په ډګر کې له جګړې لاس واخيست او سيستان ته روان شو.

ميرسيف الدين په داسې حال کې چې د پاڅون کوونکو ځواک کمزورى شوى و، د نادر له ځواکونو سره خپلې مبارزې ته دوام ورکړ او په دې توګه د جګړې په ډګر کې په مېړانه ومړ. پاڅون کوونکو چې خپل مشر يې له لاسه ورکړى و، له مقاومته لاس واخيست او سره بېل شول.

دې پېښې د نادر ځواکونو ته وخت ورکړ چې نامنظمو پاڅون کوونکو ته سخت ګوزارونه ورکړي او فتح عليخان ونيسي.[۲۷]

فتح عليخان د ۱۷۴۶م کال په اکتوبر مياشت کې نادر ته ولېږل شو او د نادر په امر يې سترګې وايستل شوې.[۲۸]

خو پر پاڅون کوونکو د محمدرضا برى بشپړ شوى نه و، ځکه ډېر هغه بلوڅ او سيستاني پاڅون کوونکي چې ژوندي پاتې وو، د فتح عليخان د يوه فرمان ورکوونکي ميرکوچک تر مشرۍ لاندې راغلل او ميرکوچک هم هغوى د (خواجه غره) کوه خواجه، لرغونې ګارې "درز" پر لوري چې يوه پياوړې ګاره او د هامون د لويديځ د پاى په لوړه څوکه کې وه، وبلل.[۲۹]

نادر سم له لاسه خپل وراره علي قليخان او طهماسب خان جلاير ته د پاڅون کوونکو او تر ټولو لومړى د ميرکوچک د ځپلو دنده ورکړه.

خو د خلکو ځپل او ايلول ناشونى کار و، هغو خلکو چې د ملاماتوونکو باجونو او خراجونو له کبله نېستمن شوي وو، د نادر د لېږل

شويو پوځونو پرضد سخت مقاومت وکړ. پاځون کوونکو اعلان وکړ چې د شاه د پوځونو په واسطه تر نيول کېدو مړينې ته ترجيح ورکوي.

د شاه د پوځونو په رانژدې کېدو سره خلکو خپل خواره او نور توکي په خاورو کې پټول او خپله هم د خواجه نومي غره په لويو ګارو يا نيزارونو کې پټېدل.

په دې توګه به پاځون نوره پراختيا او ځواک هم مونده.[٣٠]

محمدکاظم ليکي: کله چې علي قليخان د پاځون د ځپلو لپاره سيستان ته راغی، نو د ورانی له وحشتناکې منظرې، تشو کليو او خالي ښار سره مخامخ شو.[٣١]

هماغه مهال هره ورځ د نادر د وژنو، بېرحميو او وحشتناکو هڅو خبرونه اورېدل کېدل، د ځينو افشاري خانانو او د شاه د ځينو خپلوانو لکه: (امام قليخان، محمدعليخان، قاسمخان افشار او نورو...) د ړندولو او وژلو خبرونه هم اورېدل کېدل.[٣٢]

د (دولت نادر شاه افشار) کتاب ليکوالان ادعا لري چې د سيستان ځينو اوسېدونکو له پاځون کوونکو سره خيانت وکړ، له علي قليخان سره يې د زرو تنو پاځون کوونکو د نيولو او د بري ګټلو په برخه کې مرسته وکړه. خو په وروستيو ټولو جګړو کې د علي قليخان پوځونو ماتې وخوړه او ځينې پوځيان يې د پاځون کوونکو خوا ته وتښتېدل.[٣٣]

پر همدې مهال خبر راغی چې نادرشاه د علي قليخان د ورور ابراهيمخان ټول مالونه لېږدولي او امر يې کړی چې علي قليخان دې د ماتې په بدل کې سل زره تومانه او طهماسب قليخان جلاير دې هم د شاه خزانې ته پنځوس زره تومانه ورکړي.

علي قليخان ددې فرمان تر مونډو وروسته پوهېده، چې د پاځون ځپل او د سيستان له خلکو په دې کچ د مالياتو اخيستنه يو ناشونی کار دی، نو له دې کبله له پاځون کوونکو سره يو شو. ډېرو خلکو چې د شاه د پوځونو

او د مالیاتو اخیستونکو له ویرې غرونو، نیزارونو او سمڅو ته پناه وړې وه، بېرته خپلو پخوانیو استوګنځیو ته راستانه شول.(۳۴)

خو طهماسب خان، سره له دې چې د پنځوسو زرو تومانو مالیاتو (جریمې) په ورکولو موظف شوی و، بیا هم نادر ته وفادار پاتې شو او په دې هڅه کې شو چې علي قلیخان د سیستان له پاڅون کوونکو سره له یووالي راوګرځوي، څرنګه چې علي قلیخان د هغه له لارښوونې سرغړونه وکړه، نو طهماسب هم د هغه په اړه د نادر له خوا د اعدام صادر شوی فرمان وروښود. علي قلیخان هم طهماسب ته د نادر په لاسلیک د وژلو فرمان وښود، که څه هم طهماسب د دې فرمان په کتو یو څه اغېزمن (متأثر) شو، خو بیا هم نادر ته وفادار ملګری پاتې شو.

د نادر پرضد د علي قلیخان لومړنی اقدام دا و چې له خپل ځواکمن حریف میرکوچک سره یې روغه وکړه او د نادر پرضد هغې ویرې چې د نادر له لوري هره خوا خپره شوې وه، د سیستان، بلوچستان، هرات، بادغیس، بلخ، اندخوی، ننګرهار، کابل او نورو سیمو قومونه پاڅون او بښورښ ته وهڅول.(۳۵)

کله چې په خراسان کې د علي قلیخان د پاڅون خبر خپور شو، نو د هرځای د استازو او فیوډالانو لیکونه ورته سیستان ته راتلل او د هغه له پاڅون سره یې د یووالي چمتووالی ښوده، علي قلیخان ورو - ورو د نادر د تخت او تاج د نیولو په سوچ کې شو، علي قلیخان د (۱۷۴۷)م کال د اپرېل په شپږمه [۱۱٦۰هـ کال د ربیع الثاني په ۱۵ مه] له ډېرو ځواکونو سره له سیستانه هرات ته راغی. د هغه ځای ډېر قبایلي مشران ورته راغلل او خپل ملاتړ او د مرستو ژمنې یې ورته اعلان کړې، دلته طهماسب خان یو ځل بیا هڅه وکړه چې د نادر پرضد علي قلیخان له هر اقدامه راوګرځوي. خو علي قلیخان نه یوازې د هغه لارښوونو ته غوږ ونه نیوه، بلکې هغه ته یې زهر ورکړل او ویې واژه.(۳٦)

د روسيې سفير شازاده م.م ګليتسين د ۱۷۴۷م کال د اپرېل په ۱۳ مه نېټه له رشت ايالت څخه ګزارش ورکړ چې: "د ايرانيانو د بې کچې خوارۍ له کبله نومورې پاڅونونه هرځای خپاره شوي، چې وجه يې د شاه بېسارې لوټونې او ستم دی، ټول ايران له حتمي زوال سره مخ دی، لکه څنګه چې خپله ايرانيان په يوه خوله او غوڅ ډول وايي: په ايران کې يوازې خراسان ايالت تر نورو يوڅه هوسا دی، خو اوس هغه ځای هم له داسې وضعې سره مخامخ دی، چې يووخت يې د سيستان د پاڅون په بهير کې ونه شول کولای د شاه پوځيانو ته ډوډۍ ورکړي؛ نور ولايتونه هم د پلازمېنې په ګډون له ورانۍ سره مخ دي، هغه کلي چې له روسيې هېواد څخه يې نيولي، لکه څنګه چې ما په خپل سفر کې وليدل ټول وران شوي، يو سم کلی هم نه پيدا کېږي. ټول اوسېدونکي يې تښتېدلي دي... خو د سيستان په اړه ټول وايي چې خلک يې ډېر ځواکمن شوي دي، ځکه که هغوی دومره خطرناک نه وای، شاه به هم دومره کارونه شا ته نه غورځول. د شاه د ځواکونو په اړه هم په زغرده ويل کېږي، چې ډېر خلک يې تر پخوا ساړه شوي او له بېلابېلو وحشتونو څخه ستړي شوي دي او هر وخت پر تېښته لاس پورې کوي". (۳۷)

د سيستان پاڅونونه په سيستان پورې محدود پاتې نه شول، کرمان ښار هم د خپلو کليو په ګډون د سيستان په پلوي د ۱۷۴۶م کال په دوبي کې له اطاعت څخه سرغړونه وکړه او د روسي کونسل (باکونين) په وينا: "د هغه ځای مشران او فرمان ورکوونکي شاه ته نه ورځي او اعلان يې کړی چې شاه ته له خدمت کولو خوشحاله دي، خو د حساب لپاره به شاه ته ورنه شي ځکه هرڅوک چې ورشي سترګې يې اېستل کېږي او ړندوي يې...

دوی هم دا غوره ګڼي چې په کرمان کې پاتې شي، په عزت سره مړه شي، خو د شاه په دربار کې شکنجه، ژانده يا خفه نه شي". (۳۸)

د نادرشاه طبيب "بازين" په کرمان کې يو هرم وليد چې له پرې کړو سرونو جوړ شوی و، د (دولت نادرشاه افشار) ليکوالانو د هغه مهال يو

رښتینی ګزارش نقل کړی: " د مارچ په څوارلسمه په کرمان کې دېرش تنه او په هغوی کې څلور خانان، درې سلطانه او یو چاوشباشي ووژل شول او دوولس تنه هم له سترګو محروم شول.

دا کار هره ورځ له استثناء پرته تکرارېږي. هغه پر هېچا، هېڅ مقام آن خپلو پوځیانو هم رحم نه کوي، بلکې له ټولو سره همدغه چلند کوي، په کرمان کې د څلورو خښتو په اندازه د سپینږیرو له سرونو یو منار جوړ شوی، ځکه چې د سرونو وېښتان یې سپین دي... هره ورځ د خلکو سترګې ایستل کېږي او خلک وژل کېږي".[۳۹]

په دې توګه نادر غوښتل د بېشمېرو وژنو او د پاڅون کوونکو په سیمو کې د سرونو د منارونو په جوړولو، پر سلو برخو وېشل شوي هېواد کې چې له اقتصادي زوال سره هم مخامخ و، خپل حاکمیت وساتي.

د فیوډالي ستم پرضد د استثمار شویو کسانو مبارزې چې ځینې به د کروندګرو په ځواکمنو پاڅونونو او ځینې به د ښار په نښستمنو کې منعکسېدلې، په رښتیا چې د نادر د فیوډالي استبداد له منځه وړلو ته د اصلي هڅو رښتینی لامل و.

د اتلسمې میلادي پېړۍ په پنځمه لسیزه کې د نادرشاه ټوله واکمني د فیوډالي بېلتونپالو او آزادیپالو د پاڅونونو او شورښونو په اور سوځېده، دا پاڅونونه په افغانستان، منځنۍ اسیا او ارمنستان پورې محدود نه وو. بلکې د ایران په ټولو ایالتونو لکه کرمان، فارس، اصفهان، شیراز، ګیلان، خوی او نورو کې د استبداد او د نادري سیاست ضد پاڅونونه چې د مالیاتي ستم پرخلاف او له کروندګرو د ناسمې ګټې اخیستنې له کبله وو، ورځ په ورځ زیاتېدل؛ اخر د خلکو پرله پسې سرغړونو اوپاڅونونو د نادر دولت له زوال او سقوط سره مخامخ کړ. څرنګه چې کله نادر د سیستان او خبوشان (قوچاق) د پاڅونونو د ځپلو لپاره روان و، نو خپل حرمسرای او خزانه یې کلات ته ولېږله او د قوچانه په دوه فرسنګۍ فتح آباد کې یې پوځ تم کړ او خو ورځې یې زین کړی اس له ځان سره وساته، چې د

تېښتې پر وخت ورځخه کار واخلي، آن يو ځل يې کلات ته د تېښتې هڅه هم وکړه، خو يوې ډلې سرتېرو پرې نه ښود او ډاډ يې ورکړ چې د ژوند ترپايه به يې خدمت وکړي. سربېره پردې يې د ځان پرضد يوه توطيه کشف کړه، سبا ته يې تصميم ونيو، توطيه کوونکيو ته چې له خپلو خپلوانو څخه يې وو سزا ورکړي، خو توطيه کوونکي هماغه شپه د نادر له هوده خبر شول. نو د نادر خېمې ته ورننوتل اونادر يې وواژه( ۱۷۴۷م کال د جون نهمه [د۱۱٦۰هـ. ق کال د جمادي الاخر ۱۱ مه].(۴۰)

د نادر په مړينې سره د هغه دولت هم دړې وړې شو او پوځي مشران د نادر په هره پراخه سيمه او قلمرو کې حکومتونو ته ورسېدل.

# د دریېم څپرکي سرچینې:


۱. محمدکاظم: نامهٔ عالم آرای نادري، دریېم ټوک، ۲۲٦ – ۲۳۳مخونه.
۲. هماغه اثر: ۲۳۴مخ.
۳. // ۲۳٦مخ.
۴. // ۲۳۷مخ.
۵. // ۲۳۸مخ.
٦. // ۲۴۰ مخ.
۷. // ۲۴۲مخ.
۸. // ۲۴۴مخ.
۹. // ۲۴۵مخ.
۱۰. // ۲۴٦ مخ.
۱۱. // ۲۹۲مخ.
۱۲. // ۲۰۴ مخ.
۱۳. // ۲۰۸ مخ.
۱۴. // دریېم ټوک، ۱۷۰- ۱۷۲ مخونه.
۱۵. // // هماغه مخ او ۳٦۸ مخ.
۱٦. // دریېم ټوک، ۴۱۸ – ۴۲۲ مخونه.
۱۷. // دریېم ټوک،۳٦۹ مخ.
۱۸. – ۱۹.// ۴۸۵ مخ. میرزا مهدیخان: جهانکشای نادري، ۴۲۵- ۴۲٦ مخونه.
۲۰. دولت نادرشاه افشار: ۱۱۱- ۲۹۲ مخونه.
۲۱. لکهارت: نادرشاه، ۳۱۵ – ۳۱٦ مخونه.

۲۱. لکهارت: نادرشاه، ۳۱۵ – ۳۱٦ مخونه.
۲۲. دولت نادرشاه: ۲۰٦ مخ. نامه عالـم آرای نادري: ۴۸۸مخ.
۲۳. دولت نادرشاه افشار:۲۰٦ مخ.
۲۴. لکهارت: نادرشاه، ۳۱٦ مخ.
۲۵. محمدکاظم: نامه عالـم آرای نادري، دریېم ټوک، ۴۸۸ – ۴۸۹ مخونه.
۲٦. دولت نادرشاه افشار: ۲۰۷ مخ.
۲۷. محمدکاظم: دریېم ټوک، ۴۸۹ مخ.
۲۸. دولت نادرشاه افشار: ۲۰۷ مخ. لکهارت: نادرشاه، ۳۲۱ مخ.
۲۹. لکهارت: نادرشاه، ۳۲۱ مخ.
۳۰. دولت نادرشاه افشار: ۲۰۷ مخ.
۳۱. محمدکاظم: نامه عالـم آرای نـادري، دریېـم ټوک، ۵۰۲ مـخ. دولـت نادرشاه افشار ۱٦٦مخ.
۳۲. لکهارت: نادرشاه، ۳۲۲ – ۳۲۳ مخونه.
۳۳. دولت نادرشاه افشار: ۲۱٦ مخ.
۳۴. // ۲۰۷ مخ. لکهارت: ۳۲۳ مخ.
۳۵. لکهارت: نادرشاه، ۳۲۳ مخ.
۳٦. دولت نادرشاه افشار: ۳۰۷ مخ. لکهارت: نادرشاه، ۳۲۳ – ۳۲۴ مخونه.
۳۷. دولت نادرشاه افشار: ۲۰۸ مخ.
۳۸. هماغه اثر: ۳۰۹ مخ.
۳۹. // ۲۰۹ مخ.
۴۰. لکهارت: نادرشاه، تر ۳۵۵ مخ وروسته.



# پایله (نتیجه):

د نادرشاه افشار دولت د یوه استبدادي فیوډالي نظام بېلګه وه، چې د شاه حاکمیت کومه پوله نه پېژندله.

نادرشاه افشار د هغو یرغلیزو جګړو په نتیجه کې چې د اتلسمې پېړۍ په څلورمو او پنځمو لسیزو کې یې ترسره کړې، وکړای شول ارمنستان، ګرجستان، اذربایيجان خیوه، بخارا، افغانستان، منځنۍ اسیا، بلوچستان او د مغولي هند ټول شمال -لویدیز ولایتونه په خپل دولت پورې اړوند کړي.

ددې هېوادونو ځینې برخې د نادر د دولت پر ایالتونو بدلې شوې وې او پاتې هم د (واسالي) هېوادونو په توګه اداره کېدې.

د نادرشاه دولت یو کمزوری نظامي فیوډالي اتحاد و، چې په هغه کې د اقتصادي ژوند ګډون خلک نه سره تړل، هغه خلک او هېوادونه چې د فرهنګي او تاریخي لرغونتوب له مخې یې یو له بل سره توپیر درلود، په زوره یو په بل پورې تړل شوي وو، د یوه فیوډالي دولت په اډانه کې ددې بېلابېلو هېوادونو معنوي پیوند د پردي د تونـد ستم او بېرحمانه فیوډالي ګټې اخیستنې او خونړي ظلم لامل شوی و. دا هغه عمده ټکي

ووچې په نیول شویو هېوادونو کې یې د آزادۍ غوښتنې مبارزې پارولې؛ هغه مبارزې چې د نوموړو هېوادونو پر تولیدي ځواکونو یې ژور منفي اغېز ښانده او فرهنګي او اقتصادي تګلار یې دروله.

په افغانانو، ازبکانو، ترکمنانو، بلوڅانو، ګرجیانو او ارامنه ووکې د آزادۍ غوښتنې لومړنې پاڅونونه ډېر شول، ځکه دا خلک په ډېر ستونزمن حالت کې وو، د سیمه ییزو فیوډالانو له خوا استثمارېدل او د نادر دولت له خوا هم تر شکنجې او مذهبي پلټنو لاندې راتلل.

د نادر پرضد د ازادۍ غوښتنې لومړنی پاڅون په هرات کې د ذوالفقار خان ابدالي په مشرۍ په (۱۷۳۰ - ۱۷۳۱م/ ۱۱۴۳هـ کال) کې ترسره شو، وروسته ترکمنو، تکه وو، ساروقو، ایرسارو او نورو قومونو هم په ۱۷۳۴م کال په خراسان کې پاڅون وکړ، چې په همدې کال نور پاڅونونه هم وشول.

د ۱۷۴۰ م کال له پیله بېلابېلو پښتنو قومونو د کابل رود په سرچینو کې د نادر د استبدادونو پرضد د پاڅون جنډه هسکه کړه، سره له دې چې د نادر ډېرو پوځیانو دا قومونه په وینو ولړل، بیا یې هم زموږ په خلکو کې د خپلواکۍ غوښتنې روحیه کمزورې نه کړه، هرځل به چې د هېواد په کوم ګوټ کې کوم پاڅون د توپ او خمپارو په زور د لنډمهال لپاره کرارېده، بل پاڅون به په بله خنډه کې راولاړېده او څه موده به یې دښمن ته د سر په کاسه کې اوبه ورکولې.

په ۱۷۴۲م کال د بلخ او اندخوی خلک هم د نادر د استبدادي واکمنۍ پرضد اوچت شول، تاریخ کښونکو د پاڅون کوونکو شمېر له

پنځوسو تر شپېتو زرو تنو لیکلی دی. ددې پاڅون مشري د عصمت الله خان ازبک پر غاړه وه، د نادر پوځونه که څه هم وتوانېدل د مجهزې توپخانې په واسطه پاڅون غلی کړي او په جګړه کې عصمت الله خان ووژني، خو ډېره موده نه وه اوښتې چې په بلخ کې بل پاڅون لمبې بلې کړې (۱۷۴۵ م کال).

د پاڅون په مشرتابه کې د بلخ د والي ورور مشتاق بېګ و، چې د بدخشان حاکم میرزانباتخان او خان ارال میرزاقل ازبک هم ورسره یو شوي وو. خو د نادر پوځونو د سیمه ییزو فیوډالانو په مرسته دا پاڅون وځاپه.

د بلخ د پاڅون د ماتې عمده علت د دښمن له خوا مشتاق بېګ ته ژمنې ورکول او د بدخشان او خان آرال د پاڅون کوونکو ترمنځ د وړ ارتباط نشت او د کندوز د فیوډالانو په تېره د بدخشان له فیوډالانو او آرال سره د هزاره خان ازبک مخالفت و.

د نادر پوځ ته د پاڅون کوونکو د لوړ پوړ (قشر) تسلیمېدل: د پاڅون ځینې ګرندی کوله، نادر به هم د پاڅون کوونکو د لا ځپلو لپاره د پاڅون تر ځپلو وروسته پر سیمو ډېر مالیات کښېښودل. لکه په ۱۷۴۶ م کال چې یې د بلخ او اندخوی پر خلکو ډېر ملاماتوونکي مالیات وضعه کړل.

د نادري دربار د پېښلیکوال محمدکاظم په وینا: "دوه سوه زره یې د (بلخ او جوزجان) پر اویماق قوم کښېښودلې". د بلخ او اندخوی

اوسېدونکو خپل ټول مالونه خرڅ کړل او یو سل او اویا زره( د ٦٥٠ زرو تبرېزي تومانو اندازه) يې نادر ته وسپاره.

ځکه چې نور يې يو دينار هم نه درلود، چې د نادر دربار ته يې ولېږي، نو اړ شول چې لېريو غرونو ته وتښتي او ځان او خپل ماشومان د نادر د پوځيانو له شره خلاص کړي.

د ماليو د مامورينو سپکاوي او توند چلند په ۱۷۴۶ - ۱۷۴۷ م کلونو کې بيا هم د بلخ، اندخوی، بادغيس، هرات او سيستان د بېلابېلو قومونو د پاڅون لامل شو، چې د نادر تر مړينې روان و.

لکه مخکې مو چې يادونه وکړه، د خلکو د پاڅون عمده علت فيوډالي ناوړه ګټه اخيستنې او د ماليانو سخت فشار و، چې د نادر د واکمنو له خوا پر خلکو تپل کېدل.

خو له پاڅونونو څخه د خلکو موخه د نادر د مالياتي ستم لړوالی و، په داسې حال کې چې ځينو فيوډالانو د نادر له سياسته د ناخوښۍ او د خپلې اقتصادي وضعې د ښه والي لپاره په دې پاڅونونو کې ګډون کاوه، ځکه چې په پاڅون کې ددې دوو ډلو هدفونو سره توپير درلود، نو د فيوډالانو لوړ قشر به، چې ډېر وخت به يې د پاڅون مشري پر غاړه لرله، له پاڅون کوونکو سره خيانت کاوه او له شاه يا د هغه له استازو سره يو کېده.

لنډه دا چې د پاڅونونو کمزورې ډلبندي د مشرانو سيمه ييز اوسېدل او د داسې مشرانو نشت چې په هڅاند ډول د خلکو پر ګټه مبارزه وکړي،

د پاڅون کورنیو اختلافونو او د فیوډالانو خیانتونو ټولو یو د بل په مرسته مخکې له مخکې د هر پاڅون برخلیک ټاکه.

د اتلسمې پېړۍ په پنځمه لسیزه کې فیوډالي ټټو اخیستنو او د نادرشاه د دولت د مالیاتي ستم پرضد پر له پسې پاڅونونو، نادر د سختې اقتصادي پاشلتیا کندې ته ټېل واهه او د سختو طبقاتي او کورنیو تضادونو او د نادر د فیوډالي دولت د رانسکورېدو لامل شول.




پای

## د صحاف نشراتي مؤسسې خپاره شوي آثار:

| اثر | لیکوال |
| --- | --- |
| د کندهار مشاهیر | محمد ولي ځلمی. |
| پښتو مثنوي | مولوي صالح محمد هوتک. |
| د میرزا حنان بارکزي دېوان | سریزه، سمون: م.معصوم هوتک. |
| د افغانستان او روسیې د روابطو لنډه تاریخچه | محمد ولي ځلمی. |
| زمونږ لیکنې | محمد حلیم سلیمي. |
| میرزا عبدالودود هوتک | م. معصوم هوتک. |
| دکندهار او کابل تاریخي مسجدونه | محمد ولي ځلمی. |
| د بېنوا پرېشانه افکار | استاد عبدالرؤف بېنوا. |
| ستوري په لمن کې | درویش دُرانی. |
| پښتني انځور | محمد نعیم آزاد. |
| ورکه مېنه | عبدالباري جهاني. |
| پایکوب | عبدالباري جهاني. |
| د سباوون په تمه | عبدالباري جهاني. |
| هرات، پښتانه او ستره لوبه | عبدالباري جهاني. |
| پخلی (آشپزي) | جمیله همت. |
| هوتکیان | عبدالرؤف بېنوا. ژباړه: یونس مراد. |
| او همدا اثر. | |

**Published by:**

**SAHAF** Book Publishing Institution

Quetta

**2001**